# ديوانِ
# قنبر علي خان





مُرتّبهٔ

همیش خلیل

دارالتصنیف عقب ډاکخانه قصه خوانی

پېښور ښهر

# کتابیات

(۱) ادبیات سرحد جلد اول تالیف دَ رضا همدانی صاحب
(۲) پښتانهٔ شعراء لمړے ټوک. تالیف دَ عبدالحی صاحب حبیبی
(۳) دیوانِ عبدالرحمان سره دَ تمهیدهٔ دَ مولانا صاحب عبدالقادر (مرحوم) او حاشیے دَ مولانا صاحب فضل و دود.
(۴) دُرّ او مرجان (دیوانِ عبدالحمید) سره دَ مقدمے دَ ډاکټر سید انوار الحق صاحب
(۵) دیوانِ عبدالقادر خان خټک (قلمی) په شکریه دَ قاضی محمد یوسف فاروقی
(۶) دیوانِ علی خان سره دَ مقدمے او شرحے دَ ډاکټر سید تقویم الحق صاحب کاکاخیل.
(۷) دیوانِ کامگار خان خټک سره دَ مقدمے او شرحے سید تسنیم الحق صاحب کاکاخیل.
(۸) دیوانِ مرزا خان انصاری سره دَ مقدمے دَ همیش خلیل
(۹) دَ عبدالقادر خان خټک دیوان دَ قندهار چاپ سنه ۱۳۱۷ ش سره دَ مقدمے دَ عبدالحی صاحب حبیبی.
(۱۰) دَ رحمان بابا تالیف دَ دوست محمد خان صاحب کامل مهمند دَ پوهنه بیان شو وکتابونو نه علاوه په قنبر علی خان دَ تحقیق په سلسله کښے زه دَ ښاغلو مفتی الله خان دَ بالانی

سید جعفر حسین شاه ریښتونی، نصرالله خان نصر، رفیع الله خان اورکزی او سید فضل حسین صاحب د شیرکوټ، تحصیل و ضلع کوهاټ مشکور دیم. چا چه په عین موقع په دغه حلقه په ځینو معلوماتو کښې زما رهنمائی کړې ده.

همیش خلیل

# دَ دے دیوان په حقله

دَ قنبر علی خان دَ قلمی دیوان دغه نسخه ما ته دَ سید جعفر حسین شاه
صاحب ریښتونی دَ استرزئی پایان تحصیل و ضلع کوهاټ نه
په لاس راغله۔ دا قلمی نسخه دَ یوې بلې قلمی نسخې نه په ۱۰ر
رمضان المبارک ۱۳۵۴ھ کښې لطیف حسین نقل کړې ده۔
خط ئې ډیر خراب او دَ لوستلو قابل نهٔ دے۔ غلطۍ پکښې
درمره چه حد ئې نشته۔ هم دغه وجه ده۔ چه اکثرو ځایونو
کښې خو ئې ما دَ خپل وس او توفیق مطابق تصحیح وُکړه۔
کوم کوم ځائې چه ما تصحیح مناسب ګڼلې ده۔ هلته مې دَ قلمی
نسخې اصل هم په حاشیه کښې دے۔ ولې کوم ځائې یا په
کوم لفظ چه نهٔ یم پوهه شوے۔ هغه مې دَ نسخې دَ اصل مطابق پرېښې دي
دا نسخه مکمله نهٔ ده۔ په ۲۳ر جنوری ۱۹۶۰ء سنه چه زهٔ دَ ښاغلی
نصرالله خان نصر (مرحوم) په معیت دَ قنبر علی خان دَ ژوند دَ حالاتو
معلومولو په سلسله کښې کوهاټ ته لاړم۔ نو هلته په مختلفو کلو کښې
دَ قنبر علی خان کلام زما تر نظره تیر شو۔ دغه کلام کښې دَ قنبر علی خان
داسې غزلې وې۔ چه په دے دیوان کښې نشته۔ ما دَ هغه غزلو
دَ دا نقل کولو ډیر کوشش وُکړو۔ ولې چا سره چه دا کلام وو۔

هغو ماته دَ نقل کولو اجازت را نکړو. بلکه ښاغلی سید جعفر حسین شاه صاحب ریښتون ووئیل. چه نقل خو ئے لا څه کوے. چه داخلق دَ شاعرانو کلام چاته ښائی هم نه. او دا روایات دُنن پرون نه بلکه دَ مودو مودو راسے راروان دی. بهرحال دَ قنبر علی خان نور کلام خو په لاس رانغلو خو دَ یو څو نورو ګمنامو شعرائو څه غزلے مے په ډیره مشکله دَ سید ګل حسین شاه صاحب دَ شیرکوټ نه را نقل کړے. دا ګمنام شاعران عثمان، سید شاه اولیاء، سید احمد شاه، سید انور شاه، نور علی او نور الله دی.

دَ سید انور شاه صاحب مرثیه چه هغو دَ قنبر علی خان په وفات وئیلے ده. ما دَ بیاض په شکل دَ مختلفو شعرائو دَ کلام دَ مجموعے نه را نقل کړه. دا مجموعه میر فضل حسین صاحب دَ شیرکوټ سره ده.

دَ قنبر علی خان او سید انور شاه دَ مکملو قلمی دیوانونو پچقله سید فضل حسین صاحب دَ شیرکوټ ووے چه دا دواړه دیوانونه هغه په یو جلد کښے سید قاسم دَ "ابراهیم زئ" تحصیل هنګو کوهاټ سره لیدلی دی.

دَ قنبر علی خان دغه لاندے غزل "درولګه خزانه" ورومبے توک نه رانقل کړے شو. تا سفاچه دَ ور وستو رایادیدلو په وجه په کتاب کښے دَ حروف تهجی دَ سلسلے نه پاتے شو.



شاهدي ده دَ کامل دَ خُلے برحق
چه مخلوق دے شاه دَحسن له رونق
کهٔ تحقیق ئے دَیقین په فهم وُکړے
کُل دفتر دے دَهغهٔ مخ له ورق
له خلقت دَ دهٔ تمام عالم مخلوق شهٔ
په نامه ئے خدائے له خپل نام کا شتق
کهٔ دَعلم په ظاهر باطن رسیږی
دهٔ له رویه دی پیدا اوّوه طبق
مُعَطّرئے جنتونه شوهٔ له عطرو
ګلاب ګل ئے زینت واخست له عرق
شپه اوورځ ئے ماه ومهر په طلب دی
صبح شام ئے جستجو کاله شفق
ملائیک کهٔ انبیاء کهٔ اولیاء دی
بهرمند دی ستا دَعلمه له سبق

اے قنبر علی تلقین دَ کامل واخله
په عمیق دریاب ګډ نشے بے زورق

# دیباچه

دَ کوزے پښتونخوا سیمے کهٔ یو طرف ته دَ شعر و ادب په ډګر
رحمان بابا، خوشحال خان، علی خان، میاں نعیم او داسے نور ډیر
مرونه زیږ ولی دی۔ نو بل طرف ته دَ تیراه پاکے او معطرے
فضا، شاعرانه او غیور ماحول دَ قنبر علی خان، قلندر اپریدیؒ
میر جعفر اورکزے، مُلا دوست علی سلطان زی او داسے
نورے ډیرے ادبی سیتے پیدا کړی دی۔

اورکزے اتلس قامه یا دیرش دی۔ ویلے شی چه په دوی کښے
خوارلس قامونه اصلی نسبی اورکزی دی۔ باقی څلور چه په
هغو کښے دوه قومونه یعنی علی خیل او میشتی یوسفزی دی۔
چه دَ سوات له سیمے راغلی دی او اورکزو کښے آباد شو یدی۔
دغه نه علاوه دوه نور قومونه یعنی شیخان او ملا خیل دَ
کردیزنه راغلی دی۔ ولے اوس دغه څلور واړه قومونه چه په
عرف عام کښے اورکزی بللے شی۔ چه په مواجب او ننګیاو کښے
دَ اورکزو دَ باقی څوارلسو قومونو سره برابر شریک او
حصه دار دی۔ پاتے څوارلس قامه اورکزے دے۔

(۱) خوشداد خیل (۲) مسوزی یا موسلی زی (۳) محمد زی یا ماموزی،

(۴) علی شیرزی (۵) رابیا خیل (۶) آخیل (۷) برمحمد خیل (۸) متی خیل (۹) فیروز خیل (۱۰) اتمانخیل (۱۱) بیزوتی (۱۲) ستوری خیل (۱۳) سپه (۱۴) چمکنی۔

دَ اورکزی قوم وجه تسمیه دا بیانیږی۔ چه دَ اورکزو مشر نیکهٔ په ځنګوالی کښې دَ ځپلے قافلے نه ورک شوے وه۔ څه وخت چه قافلے دَ هغهٔ لټون وُکړو او هغه ئے بیا مونډ و۔ نو دَ هغویُ دَ خُلے نا سا په "ورک څوے" ووتو۔ او دو دوو دانوم "اورکزے" شو۔ دغه نه پس دَ هغهٔ اولاد په اورکزی قوم مشهور شو۔

قنبر علی خان دَ اورکزی قبیلے دَ عبدالعزیز خیلو دَ سانګے دَ باقی خیلو په پښنه کښې دَ سرور خان کره دَ تیراه دَ مشهور درے "دره متی خیل" په "کلایه" نوم ئے کلی کښې سترګے غړولے وے۔ ابتدائی تعلیم ئے دَ خوا وُشا دَ عالمانو نه حاصل کړے وه۔ دَ خپل وخت دَ مشهور صوفی او بزرګ سید انورشاه صاحب دَ مریدی په حلقه ئے په غوږ کړه۔ او دَ عمر زیاته برخه ئے دَ خپل مرشد په خدمت کښې تیره کړے وه۔ خپل دیوان کښې کُ سید انورشاه صاحب سره ځائے په ځائے دَ خپل عقیدت اظهار په دے الفاظو کوی:-

---

ل بناعلی رضا همدانی دَ "ادبیات سرحد" جلد اول ص۲۸م کښې اصغر لیکلی دے قنبر علی خان دَ خذر خان او یا شمیر خان په اولاد کښې وه۔ تاسفاً چه مکمله شجره ئے ما پیدا نهٔ کړه۔ (وګورئ شجره ص۱۲)

۵

په کمال به دُرسم دَ خدائے په حکم
چه مُرید زهٔ په یقین دَ کامل پیریم
کامل پیر دے انور شاه صاحب باورکړه
زهٔ قنبر علی ئے څکه دا مستکیر یم

---

په دوه کو نو آزاد ه قنبر علی دے
چه بندی دَ شاه دَ مینے په زنځیریم

---

چه په ذره کښے ئے دَ مدح نور جلوه کا
دَ قنبر علی زړهٔ نُور محض دَ انور کړو

---

دَ قنبر علی غزل دَ شاه صفت دے
هر یو حرف ئے معنوی دُرِ خوش آب شهٔ

---

همه وارهٔ عنایت دَ انور شاه دے
چه ئے مدحه کل راوُرم دَ ذره کل باغه

قنبر علی خان شاعر، عالم او ادیب وُه۔ صوفی او عامل سړے وه۔ دَ ژوند په دوستو شپو ددځو کښے ناروغه شو۔ علاج دَ پاره پېښور ته راغلو۔ "بالا ماڼئ" کښے دَ خپلو ترېورا نو کره ډیره شو۔ ولے علاج ئے کارگر نشو او آخر دَ جمعے په شپه ۱۱ رجب ۱۳۰۳ھ کښے وفات شو او دَ چراغ بیگ

په اديره کښې چه دَ سول کوارټرو نو او بالا ماڼۍ پېښور ترمينځ ده، دفن کړشو.
سيد انورشاه صاحب دَ قنبرعلی خان په وفات يوه وُږده مرثيه ويلې ده.
د دغه مرثيې يو څو شعرونه دا دی:-

د جمعې شپه وه رجب يولسم وُه ؛ په باقی عالم قنبر ايښې قدم وُه
له دُنيائه رحلت وکړ وعقبیٰ ته ؛ کور په کور په هلکی دوستانو غم وُه
په خاطر باندې هسې رنګ زخمی کړا ؛ له دوه سترګو مې جاری دَ وينو نم وُه
سخاوت به ئې کوّل دَ خدا له دَپاره ؛ په موجب دَ شرعې هم ديانت مستحکم وُه
د سلوک په علم پوهه هم خبردار وُه ؛ تصوف علم ئې کړې معلم دُه
په آئيلې دَ پېښور دفن په خاک شه ؛ متصل دَ چراغ بيګ و قبر هم وُه
مغولان وَ افغانان بانډې حاضر وو ؛ په زرګونو بې حساب خلق پرې جم وُه
انورشاه فاتحه دِ تا په روح کړه ؛ چه هميش په ملاقات دِ تا خرّم دُه

زر دوه سوه اووه کاله دَ هجرت وو
۱۳۰۷ هـ
ميرانور دا غزل ويلې دَ ماتم وُه

له اديره

دَ قنبرعلی خان پلار سرور خان ته به مغلی حکومت مواجب ورکولو.
نو دَ پلار دَ وفات نه پس دهٔ دا مواجب پريښو۔ دَ قنبرعلی خان دَ
وفات نه پس دَ هغهٔ ځوئې صفدرعلی خان دا مواجب بيا قبول کړو.
دَ قنبرعلی خان په پنځم پشت کښې دَ هغهٔ يو ځوئې، چه دَ دهٔ نوم هم
قنبرعلی خان دې، دَ "مستورې توې" په غاړه دَ "کلايه" نه دوه ميله
لرې خانه ده جوړه کړې ده. په "ميرازی" کلی کښې اوس هم استوګنه لری۔
دَ قنبرعلی خان دَ کلام ځنې برخه دَ بنګښو علاقه کښې دَ هغه دَ ځينو معتقدينو
سره ده۔ چه دَ عاشورې مياشت کښې ئې پڅيلو غونډو کښې په عزت سره لولی.


عبدالعزیز اول
علی کرم خان
اسمعیل خان
دولت خان
امان خان (امان خیل)
فیروز خان (فیروز خیل)
خواجہ محمد خان
محمد خان
اللہ داد
عبدالعزیز
میر عزیز
مانی خان
بہلول خان
اصغر خان
سلیمان خان
درویش
کمال
طور خان
باقی محمد (باقی خیل)
خضر خان
شیر خان
فتح محمد
عالم خان اول
عبداللہ خان اول
احمد خان اول
حنیف اللہ
عبیداللہ
خیراللہ
عبداللہ خان دوم
عالم خان دوم
کامگار خان
عثمان خان
ارسلا خان
محمد اکبر خان
امین اللہ خان
محمد سرور خان
روح اللہ خان
حسن خان
صفی اللہ خان
ظفر اللہ
فتح اللہ
ہدایت اللہ
سعادت اللہ

دغه کلام کښې دَ قنبرعلی خان داسې ډیرې غزلې او مثا تب شته ـ چه دَ دغه دا دیوان پرِ ترڅهُ حده مکمل کیږ ې شو. ولې لکه څنګه چه ما مخکښې عرض کړې دې دَ قنبرعلی خان دغه عقیدت مندان دَ شیعه شعراءُ دَ کلام دَ خودَ ونې په کلکه مخالف دی او دا ې خیال دې ـ چه دَ دغه شعراءُ دَ کلام دَ امانت فخر دِ دهم دوی ته حاصل وی ـ هر کور کښې دَ دهٔ دَ کلام څه لږ ه ډیره برخه موجوده ده ـ چه دَ تبرک او دَ خپلې عقیدې دَ بې بها سرمایې په طوره دَ ځا نو نو سره امانی کړیده ـ

هسې خو قنبرعلی خان یو څو غزلو نه دَ خپل عصر نه دَ وړاندې شعراءُ او دَ خپل همعصر شعراءُ په تضمین جواباً ویلی دی. لکه دَ مرزا خان انصاری ، رحمان بابا، حمید بابا، عبدالقادر خان خټک ، کامګار خان خټک ، محمدی صاحبزاده ، علی خان ، نصرالله صدیق، حافظ شیرازی او شاه شرف وغیره ـ لیکن دَ رحمان بابا په حقله دَ قنبرعلی خان دَ دې ویناه صفا معلومیږی چه رحمان بابا دَ قنبرعلی په زمانه کښې ژوندې وه ـ لکه چه وائی :-

مه کړې چه رحمان مهمند سوال دَ دې غزل وه

زلفې دِ دَ ډیرې درازې یا تا سره دی

قنبرعلی خان چونکه په کال ۱۲۰۷ھ کښې وفات شویدې ـ دَ زیږدنې نیټه ې صحیح طور نشو متعین کولې ـ خو که دَ قنبرعلی خان عمر سل کاله او دَ هغه دَ شاعری عروج په دیرشم کال فرض کړو نو په دغه حساب دَ رحمان بابا ژوند تر کال ۱۱۳۷ پورې یقینی کیږی بهرحال دا شعر دَ محققینو دَ پاره غور طلب او په دغه حقله دَ مزید

تحقیق او وینا ضرورت دے۔

دغه شعراؤ نه علاوه تنبرعلی خان دَخپل وخت دَیو خان ظفرخان
په مرګ یو مرثیه ویلے ده۔ ولے دَ بدله مرغه دَ مرحوم بحقله صحیح حلومات په لاس رانغ

**دَقنبرعلی خان شاعری** ا۔ تنبرعلی خان به حیثیت مجموعی دَخپل دو
یو ښه شاعر او دَیو ښکاره مقام خښتن دے۔ کلام ئے په یو مخمس
غزلیاتو، قصیدو، مرثیو او مناقبو مشتمل دے۔ په عشقی، اخ
او عرفانی ارخو نو ئے طبع ازمائی کړیده۔ په کلام کښے ئے رنګی
هم شته۔ ولے ځینو ځایونو کښے ئے سکتے هم محسوسیږ
چه دَ کلام په روانئه او تسلسل ئے فرق راوړے خوندی دا ول
ولے دا دَ کتابت تصرف معلومیږی۔ ځینی اشعار خو ئے
ډیر اوچت دی۔ چه سړے ورته حیران شی۔ لکه

۵ دا سپوږمۍ ئے چه ښکاره شی په آسمان کښے
یار دَ حسن توسن وُغورزوه نال تور
ګویا شمعه په فانوس کښے تجلّی کا
ګل اندامه چه په سروا چوی شال تور

---

دَ مخ نمر وه په مغرب دِ زلفو پټ کړو
څرګندیږی ماهِ نو له شفق رک رک

---

چه دَ وصل صبحدم ګریوان پاره کا
مشتاقان نهٔ وی محتاج دَ چرګ له بانګه

---

یو طرف ئے وُښکے زره ئے وُ کاږی بل آهونه
څرنګه برعکس یو ځائے شوی خشک وترئ

دود چه دَ آه کابزم په خوناب دَ زړهٔ رنګین وی

سرهٔ په ویښو رنګ شفق په دا شام و سحر دی

---

په ورق دَ نیلوفر دَ ګل عرق دی

که تسبیح دَ شبنم وُ بنیکے دی تلیږی

---

وسیع ملک هے دَ زړهٔ ستا دَ مخ له سوزه

په نری لختی دَ وُښکو ددست بهیږی

---

ګل دَ ګل په سترګو پریوځم چه ګل شی

کهٔ دَ ستا دَ ګل رخسار وته خم نشی

---

له سُرخې دے له چشمانو معلومیږی

چه ئے بیا په چانیت کړے دَ ستم دے

په زیر مخ دَ عاشق سرے وُښکے بهیږی ؛ چه دَ زیرپیزوان دَ سروشونډو همدم دے

دَ بهار دَ ګلو فصل مُدام ږیی ؛ دا هلال نهٔ دے په لاس دَ فلک لورے

سور پیزوان دِ په سرشونډو هسے زیب کا ؛ لکه سرهٔ لمبه چه خیژی له سراجه

په جبین کښے دِ تیک هسے تجلی کا ؛ چه جوهر وړی شهنشاه دَ سر له تاجه

په سختئ ئے دَ خاکی مورت حیران یم ؛ چه خراب نهٔ دے دَ وُښکیو له امواجه

قنبر علی خان په خپل دیوان کښے ځائے ځائے دَ اهلِ بیتو په

تعریف کښے اشعار روئیلی۔ او هغو سره دَ خپل عقیدت اظهار یے دے

پوول کوی :۔

ے

په دوستئ دَ اهلِ بیت تمام تود ئے هر وبیت په اشارت ضرب المثل دَئے

محبّت و موُدت دنور سِرّ دی ؛ دَ مومن چه په صراط بانډ منزل دَئے

تولا چه دَ حضرت په خاندان کا ؛ په ظاهر و باطن خیر العمل دے

عشق او محبت دَ هرشاعر په خته کښې فطرتاً اخلي وی. قنبرعلی خان هم شاعر دے۔ چه دَ عشق دَ احساس نه پس دَ عشق عظمت او شان په دغه الفاظو ستائی ؎

کهٔ خوک وُلولی یو بیت دَ عشق له بابه \ پرېږ به کښېل کاندی دَ عقل نور کتابه

په یو آه به جهان سرهٔ کړه و د کړه \ چه سینه لری دَ عشق په اور کبابه

دا دَ عشق محیط هسے محیط نهٔ دے \ چه پیاده عقل ئے رسی تر پایابه

عشق په بخت او په طالع سر مونښتی \ بلکه دُر په بخت چه دُرې له دریابه

زهٔ ئے کوم یو انتخاب درته ووایم \ دفترونه دی دَ عشق له انتخابه

سر انجام په عشق کښې بے سرانجامی ده

قنبر حکه دَ عشق کار کړه بے اسبابه

ډیرو شعراؤ ضرب الامثال په خپلو اشعارو کښې راوړی دی۔ قنبرعلی خان په دغه ډگر هم دَ خپل فکر نیلے زغلولے دے۔ دَ ضرب الامثالو یا متلونو غمی دَ شعر په مانک کښې داسې لګوی۔

؎ هر چه کس وی ورته یو اشارت بس وی
جو هر خود اصل پیدا کاله قولا ده

زړهٔ له درد ده دا خوشحالی وی
مشت جوړه بُوته ده له خرواره

په ظاهر او په باطن ئے دا ستگیږم
عاقلان وائی یو خدائے بنهٔ ډیر خانهٔ

**همیش خلیل**

۳۰ رجنوری سنه ۱۹۶۰

# بسم الله الرحمن الرحيم

۱

برابر که ستا په مخ مودمک نه کا
نمر به سر پوړ ته له چاه وسمک نه کا

ماه و مهر به بخس دراهم شي
دروېزه که ستا د حسن فلک نه کا

کواکب که ځان نثار لکه فلوس کا
کم وزیات به ستا د حسن نمک نه کا

ملا ګوچه حزب د انبوډ نی بیاموند
بیا به یاد په خه خطی نقدس لک نه کا

که فَأْتُوا بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِ لولي
مومنان به په دا قول کښې شک نه کا

پرې تیرې غواړې خوشي پښهلمت شي
که اقرار به دې خبره خټک[1] نه کا

د قنبرعلي غزل به هسې نه وي
چه تحسین ئې جن وانس وملک نه کا

---

[1] خټک نه مراد کامګار خټک دې دا غزل چه قنبرعلي د کامګارخان د کوم غزل په جواب کښې لیکلې دې والسلام چه نه خو په ممتعه دیوان کښې پیدا شو۔ او نه تراوسه لا بل چرته۔



په هر کار باندے چه حکم تقدیر نهٔ کا
فائده به هغه کار کښے تدبیر نهٔ کا
کل کار ونه دَ امیر په حکم کیږی
کوم یو کار دے چه پرِ حکم امیر نهٔ کا
دَ غدیر په ورځ کامل دین دَ حضرت شو
منکران عمل په ورځ دَ غدیر نهٔ کا
په قیامت کښے به بے پیر هغه پلے شی
چه طلب خوک په دنیا کښے دَ پیر نهٔ کا
معنوی پیر خاندان دَ مصطفیٰ دے
مومنان به ئے لهٔ امره تغیر نهٔ کا
اطاعت دَ اولوالامر خدائے واجب کړو
حق پرست په اطاعت کښے تقصیر نهٔ کا
اولوالامر په یقین دولس امام دی
مجتهد به اختلاف دَ تفسیر نهٔ کا
قنبر خوب دَ جدائی په بستر نهٔ کا
خو تر سر لا نشے دَ وصل حریر نهٔ کا

## ۳

زهٔ دُو تم له عقله کهٔ نظر وکړې دلدارا
دل میرود ز دستم صاحبدلان خدارا

جُدائی ئې خراب کړم مګر فضل دَ رب وُشی
باشد که باز بینم آن یارِ آشنا را

بُلبل مستی په ګل کا په رِندانو خبر بویه
هَاتِ الصبوح و هبّوا یا ایّها السُّکارا

دَ زړهٔ آئینه واخله بیا دَ یار مخ وته کوره
تا بر تو عرضه دارد احوالِ ملک دارا

کهٔ غوارې څهٔ دَ زړهٔ خوشحالی بویه دد وکونو
با دوستان تلطف با دشمنان مدارا

دا حُسن سلامت چه خدائے دِتا وته عطا کړو
روزے تفقدے کن درویش بے نوارا

جنت دَ تقوی دارو دَ مولیٰ وعده دا حقه
ساقی بده بشارت پیرانِ پارسا را

مطرب کهٔ په نغمه ترانه وائی دَ فارسی
در وجد وحالت آرد پیرانِ پارسا را

قنبرعلی په طبع دَ حافظ خرقه پوشی کا
اے شیخ پاکدامن معذور دار مارا

۴

دلگیر مه وُسه دَ دهر له عتاب
شاه به مخ در ته ښکاره کاله نقاب
په هجران کښې دَ وصال په امید پایم
شپه اخر وته رڼا شی له آفتاب
که ئې اوبو په څیر ښکاری کسان مکره
خځ به لوند دَ تږی حلق شی له سراب
سجاده بانده که کښینی بارے نشی
دَ عامی برابری له اولوالباب
که هر څو په تنے لوځے بزرګ لیدهٔ شی
ناخوانده به رُوی کردان وی له کتاب
له هغه به دَ ثواب طمع څوک څه کا
چه راغب په وُبال زیات وی له ثواب
بد بوئی بد ه، بد بوئ اخو ښکاره شی
که همیش ئے شست وشو وی له ګلاب
حق دی دا کئ ئے حوران دَغاړے هار کا
خالص دُر ئے د رته راوړ له دریاب
په قنبر دَ محبت شراب عطا کړه
سینه ستا په مودت لری حباب

## ۵

چه خبر زما په رنځ نهٔ ئې طبیبَ!
دَ مرض علاج به څهٔ کوې عزیبَ!

دَ دیدن د نخوڔ محتاج دَ طبیب شو دې
خو مژده دَ وصل نهٔ وی له حبیبَ

چه دَ ګل په څانګې ناست آه و فریاد کړې
دا ماڼې دِ له خزان دې عندلیبَ؟

چرې نهٔ په ناز اُودهٔ یاران بید ارشی
د ندې وره دَ مرګ پرې وُروکوهٔ نقیبَ!

کهٔ دَ یار دَ خط وخال حرف بیښې نوی
په منبر خطبه وُ نهٔ لولې خطیبَ

وهرچا ته خپل نصیب قسمت رسیږی
خراب زړهٔ مې دیدن غواړی بې نصیبَ

اې قنبر علی تیار انتظار وُسه
دَ مهدی بادشاهی راغله عنقریبَ

## ۶

اے پہ ذات دَ نور مظهر العجائب
پہ اسرار دعوته لك فى النوائب
ستا دَ ذات دَ مراتب یو خدائے خبر دے
یو حضرت خبر دے ستاله مراتب
پہ معنیٰ ابو تراب دَ ستا لقب دے
په ظاهر عَلِیّ بن اَبِیْ طَالِب
په ظهور دَ نور وَالشَّمْسِ وَالضُّحٰی ئے
روشن ستاله نوره یُولُس کواکب
په معنیٰ واحد ظاهر اثنا عشر ئے
هرچه پاک ئے دَ نقصان له عوائب
دَ قنبر علی ایمان حُب دَ مولا دے
دَ مولا دوستی الله کړله واجب
انور شاه صاحب تلقین عین الیقین دے
چه قنبر علی ثنا کاله صاحب

۷

چه په نیمه ورځ پوره شوې له خوابَ
څرنګ مست ئې دَ ځوانۍ ئې له شرابَ

دا ځواني به دِ بدله په پیریٔ شي
بیا به دغه ته ارمان کوې، شبابَ

کهٔ هر څو ارمان کوې سود به ونکړه
پرون تیر دې دَ نن ورځې له حسابَ

را شه نن دِ خپل ځواب پخپله وُکا
چرې نهٔ چه بیا عاجز شې له ځوابَ

په یوسُف دَ اجل هیڅ سُوې وُنشو
پښه ئې وُښکله دَ عمر له رکابَ

سلیمان، حاتم، هغه جام دَ جم څهٔ شهٔ
په څهٔ شوهٔ دَ سکندر خانه خرابَ

نمرود خپل سرزنش بیا موندهٔ له مرګه
دَ فرعون جمع شوه په نیل غرقابَ

چه رستم داستان له رخشه څنې پریوت
ته به څهٔ غرور کوې افراسیابَ

معرفت دَ خدائے په زړهٔ لره قنبره!
ګُنده خلاص شې په دوو کونو له عذابَ

## ۸

کهٔ څوک وُلولی یو بیت دَعشق له بابَ
پرے به کښل کاندی دَعقل زر کتابَ

په یوه آه به جهان سره کړه وږد کا
چه سینه لری دَعشق په اور کبابَ

دا دَعشق محیط هسے محیط نهٔ دے
چه پیاده عقل ئے رسی تر پایابَ

دَ نجوم هجوم استاد دِ ورته نهٔ کا
چه اثر دَ طلوع وُشی له آفتابَ

عشق په بخت او په طالع سره مونده شی
لکه دُر په بخت چه وُځی له دریابَ

په هر څهٔ کښے دَعشق هسے اثر پریوت
لکه نمر چه ښکاره کیږی له حجابَ

زهٔ ئے کوم یوا انتخاب درته وُوایم
دفترونه دی دَعشق له انتخابَ

سر انجام په عشق کښے بے سر انجامی دهٔ
قنبره که دَعشق کار دکلے اسبابَ

۹

چه خبر شو لم دَ عشق له لیونتوبَ
ویخ یې کړلم دَ غفلت دَ رنځ له خوبَ

په خلوت یې دَ زړهٔ راز عرض کړو عشق ته
کهٔ نجات راکړې دَ دهر له آشوبَ

په ایماء یې اشارت را وته وُکړهٔ
عاشق نهٔ آوړې دَ مینې دَ سر کوبَ

کهٔ یې سر و مال دَ عشق په سودا وُلیږي
عاشق نهٔ وائی له عشقه توبه توبَ

عشق عدد دَ محمد، علی دَ اسم
په ابجد دَ بینات شی دَ زړهٔ سوبَ

مخ روښي دَ عاشق کله وی وَیار ته
چه رڼه نکا په وُښکو کیږې خړوبَ

زهٔ قنبر علی یې دَ دربه خاورو یم
په عالم به کوم ناز له دې خاکروبَ

۱۰

چه دَ ذرهٔ براق دِ پريو تو لـه تروپ
په ضعيف صورت به څو دروم په اپ
چه سم زغبنت له د ننگر توب کولې نشې
ترو به څرنگ زغبنت کوے په راست چپ
دَ سرکښې توسن الباب لجام پکار دے
په څله راست حيوان رفتار کوى له کپ
دولتمند او به که څښي په جام دَ زرو
دَ فقير مشرب به تورتے وى يا لپ
دَ دانا کلام دَ غوړ ومرواريد کا
دَ نادان خبره و شماره په گپ
غم دَ ندق مکره رازق روزى رسان دے
چه دَ څلے سوړه دِ نهٔ وى په مرگ تپ
ته دَ نفس په خوشامند غلط نشے
دغه سپے کاندى چيچل وراندے له غپ
دَ کامل دَ ناقص لږ تفاوت نهٔ دے
دَ قانون نغمه جدا ده له ډيند پ
دا قنبر علي به ذور په صورت څوان شى
که کامل ور کا دَ عشق پياله څوغړپ

## ۱۱

تقسیم شوې مرتبه ده له الستَ
ده دَ چا مرتبه لویه دَ چا پستَ

چا خرقه دَ ریا ضت په برخه یوړه
چا دَ عشق پیاله نوشلې ده سرمستَ

بې پروا معشوق له هر چا مستغنی دې
بې له مهره کا دَ هر چا دَ زړهٔ مرستَ

ځاځ جلوه دَ زاهدانو په خلوت کا
ځاه ساقی شی همنشین له مې پرستَ

په علاج دَ تدبیر لاس به درماندهٔ شی
هر چه وُځیٔ دَ تقدیر غشې له شُستَ

ځاځې دَ کوڅې دکینسو ورباندې نښته
پیدا کړې ځې انسان له خپله دستَ

زهٔ قنبرعلی دَ شاه په مینه مست یم
خبر نهٔ یم دَ عالم له نیست و هستَ

## ۱۲

بادشاه کاندي په سرتاج وافسر مات
چه ځي زړه په محبت شي دد لبر مات
سبا بوئ ستا دګیسو روه وته راوړو
که په لاس کښې مې شه دُرج دعنبر مات
ستا دَمخ په ورق نقش دے دَ زلفو
که رنګین کاغذ کړه سطر دَمسطر مات
چانسبت دَلعلو کړهٔ ستا دَ لبانو
عاشقانو پسے کړهٔ کان دَجوهر مات
ستا دَمخ په صدقے په هرے میاشتے
فلک نمر وا ئ کړه ګرص دَ قمر مات
چاکمان ستا دَ ابرو په لاس کښې واخت
چه ځي تیر دَ بنو نشو په ځیګر مات
دَ عاشق دَ لاسه فصد حاجت نشته
زړهٔ په رګو کښې ئے دے دَعشق نشتر مات
په نصیب ئے دَ شیرینے وصل نهٔ وه
که فرهاد کړهٔ په شیرینے پسے غر مات
چه په ذبح ستا دَعشق دَشهید راشي
دَجلات په لاس له ورایه شي خنجر مات
چه قنبرعلي ثنا دَ یار دَ مخ کا
له هر حرف ئے شي په خُله تنګ دَشکر مات

## ۱۳

دَ دلبر دَ محبت لـه برکتَ
خبردارشوم زهٔ له ډیرهٔ منفعتَ

دَ فنا ځې توبنه مې واخسته له ځانه
مستغنی شولم دَ فکر له دولتَ

خطره مې دَ نیستۍ کړه تر ېنبولاندې
بدرګه را سره دروِمی له هِمّتَ

دَ دنیا دولت مې پرېښولو هغو ته
چه اول زغمی "دَوُ" ورپسې لتَ

دَ "وَجّهتُ" وجهت و ته روان شوم
ځان مې خلاص کړ دَ دُنیا له شش جهتَ

دَ ګفتار و دکردار تفاوت ډېر دے
دَ عمل جزا مومندے شی له نیّتَ

"تَوَکَّلتُ عَلَی الله" لباس مې دا غوستَ
دَ زړهٔ کوُ مې شهٔ معمور له قناعتَ

زهٔ قنبر له سرنوشته خبر نهٔ یم
دَ مولا په امید ناست یم فراغتَ

## ۱۴

چه دَ مخ برق یې دَ زلفو ترخم وُخت
له مشرق دَ صبحدم پسے دم وُخت

لکه برق چه شی خرګند هسے نا شی
دَ هوس په برخے غوری دَ غم وُخت

چه دَ غم زړے یې وچاوده په نړۍ کښې
دَ چشمانو له سرپو بنه یې غم وُخت

ملائک دَ غم له خونده خبر نهٔ دی
دغه غوری په نامه دَ آدم وُخت

تصور ځنې دَ زلفو پیچ و خم کړه
دا آه دود مے له خاطر پیچ و خم وُخت

دَ عصمت لمن دِ نوی چه لمده شی
دَ غریب له سر سیلاب دَ ستم وُخت

ستا دَ وصل دا مثال دے که څوک وائی
اوښ له باره سره ترستے په شم وُخت

په رقیب مے دَ قسم اعتبار ورک شهٔ
چه ناحق دَ ستا دَ مخ په قسم وُخت

دا خواب دَ علیخان قنبر علی کا
چه وجود مے له تیرے دَ عدم وُخت

## ۱۵

عاشقان کړے پخپل مخ الفته تُ
بیا کړے ویلے مے دیدن مخ نهفته تُ

دَ اغیار دَغم چه پروت زما په زړه دے
مکر کړے دےُ په مژګانو رُفته تُ

دغه بخت به زما کله بیداریږی
چه مدام دَ ناز په خوب ے خفته تُ

دغه دُرچه مے له ستر کو پیدا کیږی
په الماس دے کړه دَ فکر سُفته تُ

دَ وصال وعده نزدے نیسه دلبرا
دا مشکل کا زما حل بے کفته تُ

دا ځواب قنبر صدیق دَ دے غزل کا
چه کیسو کړهٔ په سپین مخ آشفته تُ

---

له دَ فکر په الماس دے اوپیچوه ـ

۱۶

ماچه ډُکا ته دَ ستا حُسن ګلرنګ تَ
نور مے نهٔ کاته په بیرته نام ونګ تَ

نام و ننګ مے ستا دَ کوُ کډ ایان خهٔ کا
بے ننګئ د فترے لینبے د ے وځنګ تَ

هم هغه عالم له عقله بے نصیب دی
چه آرام بنائی دَ مینے وملنګ تَ

بے چراغ په بل څهٔ کله پریوځی
کهٔ مشعل دَ آفتاب بل شی وپتنګ تَ

هسے شان زملبے یارهٔ آرام نهٔ شی
کهٔ مے نور شکلی وُبولی وپالنګ تَ

دَرقیب دَ ناکړدو پناه په خدائے کرم
یارے بیا را ولاړ کړے دے وجنګ تَ

سور دِ زړهٔ دَرقیبانو په قنبر کو
چه دِ وسپارهٔ دَ هجر ونهنګ تَ

۱۷

چه نظر کوی لاله دَ زړهٔ وداغ تَ
هم په دا دے چه یار نهٔ راځی وباغ تَ

په هجران یودم ژوندون دَ عاشق نشی
پروانه څکه ځان اچوی چراغ تَ

دَ بلبل په زړهٔ اغزی لکشی فریاد کا
چه ئے بوئ دَ ګل ورلشی ودماغ تَ

دا رقیب دے چه دَ یار په کوڅه ګرځی؟
کهٔ دَ باغ دَ بلبلو کُک وُشو لو زاغ تَ

دَ هجران ترخه پیاله به ئے ترځلے نشی
کهٔ څوک مینه کا دَ سرو لبو ایاغ تَ

عاشقی بادشاه کڼلا دَ یار دَ در کا
نظر نهٔ کاندی دَ خپل اصلی اوجاغ تَ

فراغت په عشق کښے څو قنبر علی کا
عاشقان کله ورکوځی وفراغ تَ

---

سله داک اختیار۔

## ۱۸

هرچه خار دَغم ترخنګه دَ ګل کښیناست
ځکه دک زړهٔ په سرو وینو بلبل کښیناست
فرهاد ځکه سر دَغم په تیشه مات کړ
چه شیرین یاسے ترخنګه دَ بل کښیناست
که دَ زړهٔ لاهو ځے وُښکو سره سیلاب کړ
شاه دَ مینے ستا دَ مخ په کابل کښیناست
له مشرقه صبحدم آفتاب طلوع کا
که دِ تیک له جبین پاس په قَربل کښیناست
په ګلچین دَ دیدن ستا دَ مخ په ګلو
سل خاروته دَ بانو په چنبل کښیناست
په قنبرعلی آفتاب دَ محشر سور شو
هرچه نن په سیوری ستا دَ کاکل کښیناست

---

## ۱۹

چه قلم له نیستان دَ عدم وُخت
په صورت لکه الف هسے سم وُخت

---

ل بعض ځنګل چرته چه نل وېره ادګنړه وی - ؤ

بیا اُکتبئ ندا پرے باندے وشوه
دَ قلم له خوکے څاڅکے دَنم وُخت
هغه څاڅکے چه په لوح له نے پریوت
د الف د صورت دم په رقم وُخت
دَ الله دَ اسم نقش پرے پیداشهٔ
پسے اسم دَ احمد مُسَلَّم وُخت
دَ احمد د نور پیدا تمام عالم شهٔ
چه په عرش دَ محبت په قدم وُخت
چه په عین ئے دَ علیؓ دا اسم راغے
په معنیٰ و د بانڈِ اسمِ اعظم وُخت
مرتضیٰ علیؓ و ځکه دَ مصطفیٰ دے
په منبر دَ سَلُونِی معلِّم وُخت
چه بتان ئے دَ مکے ذره ذره کړهٔ
له صورت د لات منات وَدم وُخت
غواصی ئے چه دَ زرهٔ په بحر وُکړه
علیؓ نفس پیغمبر ابن عم وُخت
چه منکر دَ نبوت له ولایت شهٔ
بود بنیادکه د اهل ستم وُخت
چه نبیؐ دَ علیؓ مدح یکنے نهٔ دی
د قنبرعلی غزل هسے کم وُخت

سلے هغه چا ته چه وصیت شوے وی۔

## ۲۰

مغلومیږی[1] یار دَ سترګو الوا تُ
چه عاشق ئې له نظره پریواتُ
چه دَ عشق له درده مری زهٔ حیرانیږم
مسیحا په لاس کښې دی دَ دم خاتُ
څوک چه څان ساقی دَعشق له ملاتے
ویر ے وُلید ه دَ عشق په درد پراتُ
له هیبته ئې دَ بدن زاره وُبهٔ شوه
چه دلبر ورته په بد نظر کاتُ
دلرم لا شمهٔ ے ما ته شوه په سترګو
چه رقیب دَ یار په کوډ[2] ننواتُ
له هوسه ے دَ وُښکو دُر نثار کړهٔ
دَ یار خیال پاندے چه نرهٔ سره واتُ
کهٔ هرڅو به غمازانو غمازی کړه
پچپل نفسل ئې قنبر علی ساتُ
دَ حمید جواب قنبرعلی تکرار کړ
بد وِ نه مې دلبر ز ما کاتُ

---

[1] دا غزل په قلمی نسخه کښې دوه ځله لیکلے شوے دے په دوهمی لیکلی شوی غزل کښې اوُدوم شعر نهٔ دے کښلے شوے ۔ [2] په دوهمی ځل لیکلی شوی غزل کښے دَ "کور" په ځائے "کوے" لیکلے شوے دے ۔ ÷

۲۱

کهٔ یو ځل وُڅې دَ کفر له ظلمتَ
دَحیات وُبهٔ به نوش کړې بې محنتَ

په حیاتِ جاودان به سرفراز شې
دَ کامل استاد دَ خضرؑ له دولتَ

خو چه زنګ د نفاق ورک له خاطر نشي
دَ ایمان متاع به نهٔ وړی سلامتَ

بې دَ زړهٔ له غُسله نور پاکیت نشته
کهٔ خبر شې دَ باطن له طهارتَ

عبادت هله بکار شی چه زړهٔ پاک شی
څهٔ بکار شی دَ ناپاکو عبادتَ

دَ کامل دَ در به خاوُرو باندې خوښېږم
دَ تمام جهان دَ ملک له سلطنتَ

نور لذّت چه له تا خوږ په جهان نشته
بربرړ داشه یار دَ مینې ملامتَ

چه قنبر دَ عاشقۍ دستار په سر کړه
دوه ژُغه شمله ئې پرېښې له تهمتَ

۲۲

چه دَ دین شاهراه دِ پرېښوه ځې په پټ
په باریک صراط به څرنګ ددوی جټ
دَ ګناه په درانهٔ بار به درمانده شی
په منزل چه دَ عمل ناقه شی لټ
دَ رجا کښت دَ ماتم په وښکیو نم کا
په کوشش دَ زړهٔ دَ خوف له اره ټ
په دُنیا طاعت نجات دَ آخرت دے
دَ دُنیا دا نه کهٔ لمه وی کهٔ غټ
کارخانه ئے دَ انسان مهمان خانه کړه
دسترخوان په نعمت پروت په خوشوټ
لا کله به دَ دیدن ستوری ښکاره شی
په طلب ئے ستوری ستری شوله نټ
دَ قنبر علی هر یو بیت سوزنده دے
په کوکل کښے ئے زړهٔ پروت لکه سکروټ

## ۲۳

فلک ډیرے خلقے کړے سره سټ
په کشتن ئے تیرے تورے کړے پړے سمټ
له آدمه تر دا دمه ئے څومره ځکره
لا به وژنی څوئے سترے نه وی مټ
څوک دَ چا په مرګ د لګیر څوک خوشحالی کا
ځنی ځان و ته نن زدے کا ځنی کټ

په هرچا دَ خپل مطلب ارهټ جار باسی
ګرځوی ئے سرګردانه سترګے پټ
چا په لاس کښے یو څو ورځے مراد ورکا
بیا هغو و ته دُنیا کړه رټ رټ
څوک له یاره سره وصل خوا بخښوُ کا
چا په مخ د فراق وُښکے درومی غټ
توکل چه په خدائے نه کړی قنبره!
دَ هغو کسانو نخُ دے دَ کونګټ

۲۴

کهٔ هر څوک وی راستی نو ته خُله بُوټ
خوبیا وی تل د دروغژن خبره جُوټ
دَ رښتونی دَ خُلې هر کلام رنګین دے
دروغژن سمه وینا کا کښته کوټ
په دروغو دَ چالاس کله تو دیږی
دَ فولاد به پند اور نهٔ لویږی له لوټ
چرے نهٔ وی چه یقین ور باندے وُکړے
د کاذب خبره وی دَ غوایهٔ سُوټ
دَ دُنیا پهرزان یو رنګ تللے نشی
خربوزه دَ قند هاد دهند له پُوټ
ګُندے وی دَ غم غصے دَ زړهٔ یوسی
کهٔ نصیب مے شی کامل دَ جام له کوټ
کار دَ خدائے په عنایت کیږی قنبرهٔ!
دَ تدبیر په نوک و انشوه دَ زړهٔ غوټ
تتبع قنبر مرزا دَدے غزل کا
په غافل باندے دَ سود سودا نشو تروټ

له وګورئ دیوانِ مرزا خان انصاری ص ۲۹ -- ۳۰ دَ کال ۱۹۵۹ء چاپ --

## ۲۵

سرو دَ زلفو شهٔ په لورستا دَ رُخسار کج
شي وینتهٔ دَ اور له تاوه تار په تار کج

کږې زلفې کج بانهٔ او کږې وروځې
په بستن زدن کشتن شي وار په وار کج

کج پېزوان، کږې لختۍ تورے مصرۍ دي
له سر و شونډو آب اخلی کا پرهار کج

کج کلاه بلبل و ګل ته دا اندا کړه
نو بهار شهٔ بیا سر کیږده دستار کج

کج اندیش دَ عشق له حاله خبر نهٔ دي
کیده شي رفتار دَ مار په سمه لار کج

هیڅ پروا مے دَ اغیار په کږه نشي
که په زړه کښے راته نهٔ وي نیت دَ یار کج

بے دَ یار دَ قد چه سم لکه الف دے
نور همه خلق لیده شي دَ دوزخار کج

دا غزل دَ جیم په کج ردیف ادا شهٔ
دَ قنبر علی خوش نهٔ دے یو ګفتار کج

۲۶

دَ اللہ دَ نور دَ بحر لہ امواجَ
دَ مصباح انوار طلوع کالہ زجاجَ
مرتضیٰ دوبارہ سرتر سرہ عرض کڑہٗ
مصطفیٰ څہ چہ راوڑی لہ معراجَ
ذریت واھل بیت دَ مصطفیٰ دی
کائنات ئے منوّر دی لہ سراجَ
بے دیدارہ ئے شفا دَ مرض نشی
خود خبر ئے مومنان وولہ مزاجَ
کہ مھدی ھادی لہ غیبہ ظھور وُکا
مومنان بہ شی خلاص لہ شب داجَ
کندے وی چہ دَ دیدن پیالہ ئے نوش کڑی
اے ھمیش دَ شاہ وخ وتہ محتاجَ
غلامی دَ شاہ دَ قنبرعلی کا
چہ خلاص پہ دوارہ کونہ وی لہ باجَ

## ۲۷

سپین رخسار د سفیدی یو رڼاله باجَ
تورگیسو دِ مشکین تر له شب داجَ

سور پېزوان دِ په سروشونډو هسے زیب کا
لکه سره لمبه چه خیژی له سراجَ

په جبین کښے دِ تهیک هسے تجلّی کا
چه جوهر وری شهنشاه دَ سر له تاجَ

په سختئ ئے دَ خاکی صورت حیران یم
چه خراب نهٔ دے دَ ډُبنکیوله امواجَ

دا سبب دَ ضعیفیٔ دے پرے پوهېږم
چه ژوندے کړ حمٔ دَ هجر له تاراجَ

دَ شفا اثر پیدا دَ یار له لبو
شهد نهٔ کا فائده له بد مزاجَ

صفائیٔ دَ زړهٔ پکار ده په حق بین کښے
رنګ دَ هر څهٔ مسلومېږی له زجاجَ

په داخیل نصیب راضی قنبرعلی دے
دَ فقیر غاړه وی خلاصه له خراجَ

۲۸

کهٔ خبر شے دَ مومن دَ زړهٔ لہ حجَ
پہ تحقیق بہ معارف شے لہ حجَ
حج شمار کا پہ ابجد چار دہ معصوم دی
داوینا دہ پہ کتاب کښے مروجَ
قراءت دَ قرآن صاف پہ مخرج لولہ
چہ ہر حرف ئے اداکیږی لہ مخرجَ
پہ صراطِ مستقیم کښے کجی نشتہ
تهٔ دَ نفس پہ نخوتہ مهٔ نیسہ لارکجَ
چہ قنبر علی ثنا دَ نورو سری ا
دُر مرجان شی دَ بحرین لہ مرجَ

۲۹

دَ کامل تلقین ژوندون دے له ارواح
کهٔ بهبود دَ ځان کښے وُکا صلاح
کهٔ عاقل ئے دَ خپل ځان فکر دِ وُکا
غفلت شپه ده، دَ کامل تلقین صباح
دَ صورت کشتی دَ غم په دریاب گرځی
په نجات ئے شهٔ کامل مرشد ملاح
دَ حاذق طبیب همه قول صادق دے
منفعت لری فصد ونه دَ جرّاج
کهٔ غرض خو دَ جنت کتخدائی وی
دَ پرهیز له ناوے وتړه نکاح
اے قنبرعلی دَ شاه له اراده
قیام وُکا په حَیَّ عَلَی الْفَلَاح
انور شاه صاحب دَ مخ پرتو ظهور کړه
په زجاج کښے تجلّی کاندی مصباح
دَ اسرارا ظهار په هرچا حکم نهٔ کړے
په قنبرعلی له فضله دے مباح

۳۰

زندګی به دَهر چاشی لکه دوح
کهٔ یو ځل نوش کړهٔ دَ معرفت صبوح
معرفت دَ خدائے دوستی دَاهلِ بیت دهٔ
دَ قرآن په آیا تو نو دے مشروح
کهٔ په قول دَحضرت صاحب عمل کړے
اهلِ بیت دی په مثال کشتی دَ نوح
محبانے دَ دوزخ له عذاب خلاص دی
دَجنت ودروازے دی پرے مفتوح
اے مهدی دَخپل ظهور مرهم پرے کیږدهٔ
زمانے له لاسه زړهٔ لرم مجروح
منکرانو هیڅ عمل ورنه وُ تکړهٔ
په غدیر خمهٔ نصیحت کا وه نصوح
زهٔ قنبرعلی ثنا دَمصطفیٰ کړم
دَمداح قدردانی وی په ممدوح

٣١

بیاله ماده ازاری منم په څه؟
نهٔ پوهیږم شی به خوش خرم په څه؟
په ناحقه ے دَ کړم په نامه بولی
خدائے خبر دے کهٔ به زهٔ وُم کرم په څه؟
په خولئ ستړکو ئے تل ستم غریږی
ز به ورک به کړے دغه ستم په څه؟
په دیدن کهٔ مے دم اخلی زهٔ رضایم
تر دا بنهٔ به نور ادزیږی دم په څه؟
دوحشیو رم په خلقو کښے زیاتیږی
دَ یار ستر کے کا له خلقو رم په څه؟
کهٔ په تیغ دَ جُدائی ئے زخمی نهٔ وے
په تش کښلو به چا ودهٔ قلم په څه؟
چه مدام کاندی په زړونو پرهرونه
په زړهٔ نهٔ ږدی دَ بوسے مرهم په څه؟
کهٔ په دم ئے مُردهٔ نهٔ زندهٔ کیدلے
په یو دم به ذو کیدهٔ مریم په څه؟
کهٔ دانه ئے دَ غنم خوړلے نهٔ وے
له جنته به وا تهٔ آدمؑ په څه؟

کهٔ یار هر څهٔ را ته وائی زهٔ پرے خوښ یم
راته بد وائی د نور عالم په څه؟
کهٔ په غم کښے ے غوته خورلے نهٔ وے
ضعیف زړهٔ مے وړی سیلاب دَ غم پیڅه؟
په یوه نګاه ے زړهٔ دے زماوړے
خدایا بیا مے آزمائی هر دم په څه؟
کهٔ ے خط دَ آزادئ ماته راکړے
تا وه وی دلبر دَ زلفو خم په څه؟
کهٔ مے ځان خمیر دَ غم په اوبو نهٔ وے
له چشمانو مے بهیږی نم په څه؟
په قنبر علی کهٔ رحم وکرم نهٔ کا
دَ کریم مے یاد وی کرم په څه؟

---

## ۳۲

کهٔ څرګند کړه نورانی مخ له مبرزخ
خلاص به شی مظلوم دَ ظلم له سونځ

دَ آسمان په مخ دَ ابو سیاهی نهٔ ده
دَ آه دود خیژی دَ ذرهٔ نور له مطبخ

چه دَ دین بادشاه په تخت ځی دَ دین کښی
نور شا هان ځی په مخ د رومی څو فرسخ

مرده ګان به کړه ژوندهٔ کهٔ په رښتیا کا
دَ حیات وُبهٔ موجود ځی دی ورځ

کهٔ نظر دَ عنایت ورباندے وُکا
په منکر باندے به هر زمان کړه آخ

دَ قیامت پردهٔ ځے تهٔ وکړے کریمه!
چه دیښنهٔ را باندے نهٔ وُکاندی ینځ

اے مهدی! هادی له غیبه ظهور وُکا
چه قنبرعلی کړه سوے سینه یخ

کهٔ ممات وی بیا حیات قنبرعلی کا
چه ارواح ځی شی تاروستا له نفخ

۳۳

کهٔ سرگند کړه له حجابه مخ و خے
مخ به پټ کا په سحاب کښے مخ و هے
ماه رویانو په رخسار غبار پریوځی
کهٔ په مخنه ورښکاره شی خط وځے
خط به درکا دَ خپل سر په بند گئ
په چمن کښے دِ خود ترکړهٔ لاَ و بے
لب په غاښو دَ حسرت چیچم له غمه
تهٔ چه لب کیږدے په جام دَ مے وے
مے حرام دی ستا دَ مخ په عاشقانو
بے د ستا دَ خُلے له شی وکے ورے
کهٔ شکرے دی کهٔ قند دی کهٔ نبات دی
غوارم ستا دَ لبو قی ودے و ے
قدح ماته شی ساقی پریوځی بیخوده
چه و ښوری د ستا زلَ ولَ و فے
زلف تاؤ کړه دَ سروقمیک په جبین کیږدهٔ
چه نثار کړم زهٔ دَ ستر کود و دے
دُردانے دی دَ قنبر علی بیتونه
کهٔ واچوکا په غوږ کښے ب و تے

## ۲۴

ستا په مخ اثر وُکهٔ خَط وَطے
خط را وُښوهٔ زما په رَ وَخے
رُخ به نهٔ نیسی هرګز وجدائی ته
څوک چه نیسی ستا دَ مینے تَ وبے
تبه پرے شی دَ هغهٔ چا چه په خُله کړه
ستا دَ سرو لبو له جامَ مَ وے
مے دا ستا دَ لب د چاه آبِ حیات دی
ترے زیات نشته دے لَ وَ ذَ وے
سر چه وُبازی په عشق هله سردار شی
ژوندون بیاموی دَ رَ و وَ وحے
روح ژوندے دَ عاشقانو دے قنبرهٔ!
په زړهٔ نقش لره عَ ول وے
عَ ول وی کا نقش په عین خاطره
وسیله دے په الف ول وهے

---

لہ نکه څرنګ چه څرګنده ده دل، ذا و ت نه مطلب لذت دے۔ چونکه لفظ "لذت" په پنځم شعر کښے نهٔ دے دوباره شوے نکه چه رَخ په دویم او ب یے په دریم او دغه شان باقی شعرو نو کښے تکرار شوی دی۔ نو دے نه دا قیاس کیدے شی چه دَ دے غزل پنځم شعر په نسخه کښے نه دے لیکلے شوے۔ ‡

## ۳۵

ماچه وُلیدهٔ دَ ذرهٔ په سترګو ستا مخ
نور مے هیچرے وُنهٔ لید دَ بلا مخ

دَ جفا مخ ستا په مخ کښے لیدے نهٔ شی
په هر ځهٔ کښے چه شی لید ستا دَ وفا مخ

چه عاشق په عاشقئ کښے رسیدهٔ شی
محشوقه به ورته نهٔ کا دَ جفا مخ

کهٔ رقیب دَ ستا په در کښے وینم خهٔ شی
دَ حکمته خالی نهٔ وی دَ هیچا مخ

واړه ستا دَ مخ په طمع دا ژوندون کړم
ګندے یو دم مے خوښ نهٔ دے دَ دُنیا مخ

دَ اشنا مخ مے پکار دے دَ دلبرو
زهٔ به څهٔ کوم دَ حُورونا اشنا مخ

دَ جنت صفت چه ډیر کوے زاهده!
هلته کله شته دَ یار په خیر زیبا مخ

له حیانه به ستا مخ ته کتے نهٔ شی
کهٔ څوک وَوینی په سترګو دَ حیا مخ

دَ رحمان دَ دے غزل جواب قنبر کړو
"ماسحر سا لیدلے وُوهٔ دَ چا مخ"

۳۶

کهٔ خبر شې دَ کامل پیر له ارشادَ
دَ یقین په ملک به ورشې تر مرادَ
په اخلاص ې کړه دَ زړهٔ په تخته نقشې
چه هر حرف په تلقین واخلې له استادَ
عنایت دَ پیر دولت دَ خدا داد دے
څوک به څهٔ سیالی کوی دَ خدائے له دادَ
چیرے نهٔ وی په فریب دَ دُنیا بند شے
اے دَ شاه په بند کښے له غم آزادَ
طریقه دَ محبت له مجنون زده کړه
چه بندی آ هوے خلاص کړه له صیادَ
امانت به سلامت تر ځایه ورُوړے
په قوّت دَ پیر وی دَ احقو العبادَ
دَ مولا اسم دِ وِرد دَ زړهٔ په سر کا
خبردار شه غافل نشے له اورادَ
شرافت دَ اصل هر کله پکار شی
زراعت نهٔ کوی زمکه بد نهادَ
هر چه کس وی ورته یو اشارت بس وی
جوهر خود اثر پیدا کړله فولادَ

## اے قنبر علی درخواست کوه له خدایه
## چه دِ خاص وی ذره له نیکه اعتقادَ

## ۳۷

حقیقی کعبه دَ ذره دَ دِ ته موجودَ
په طلب کهٔ قدم دِ وا خلے له وجودَ
دیر طاعت دَ عزازیل څهٔ پکار نشهٔ
چه بے عار کړهٔ وصفی ته له سجودَ
دَ گمان دَ تیرے ووا تهٔ یقین ته
په خلیل اور گلستان شهٔ دَ نمرودَ
څو کامل رهبر دَ عشق په لارے نکړے
خود بخود به نهٔ رسیږے تر مقصودَ
سامعان کهٔ دَ سماع په مجلس کړ کا
دَ نغمے خوشی به مومی لـه دا وُدَ
دَ گمان دَ وُره تشـه تاریکی ده
دَ رحمت باران به څهٔ ووری له دودَ
په خالی نیت به یار ته نهٔ رسیږی
څو چه نکړے دَ صورت ستمه نابودَ
دَ باقی اشنا طلب کړه نن دِ وار دے
دَ فانی اشنائی څو ورځے معدودَ

دَ مولا علی دوستی دَ ځان بهبود کړه
که مومن وې خبردار شه له بهبودَ
دَ دُنیا سود به نقصان کښې قنبره!
که خبر شې ته دَ معرفت له سودَ

---

## ۳۸

بیا مې ذړه ته فکر راغې مجدد
چه تمام دغه غزل شی په ابجد
دَ احد د یګانګئ حساب لنشته
دَ ابجد په حساب دیارلس دې احد
دغه دیارلس یو نبی دولس امام دی
دوازده امام آلِ محمدؐ
په حدیث دَ محمدؐ دَ خدائ له نوره
دَ معنیٰ په ملک دې بې میمه احمدؐ
هرچه میم له احمد لرې کړې احد شی
دا کلام اهلِ معنیٰ سره سند
چه تازه نوې غزل دَ مدحِ وَلی
مرتضیٰ دې دَ قنبر علی مدد

---

## ۳۹

دَ الله صفت به وایم قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدْ
له هر عیبه مُبَرا دے په ذات اللّٰهُ الصَّمَدْ
نهٔ له چانه پیدا شوے نهٔ له دهٔ نه څوک پیدا دے
فکر وُکړه دے معنیٰ ته لَمْ یَلِدْ وَلَمْ یُوْلَدْ
نهٔ ئے کُفْ له چا سره دے په قدرت کښې یګانه دے
په یقین وَلَمْ یَکُنْ لَّهٗ کُفُوًا اَحَدْ
دَ احد په آئینه کښې دَ وحدت په کارخانه کښې
دَ قدرت په خمخانه کښې ظاهر شو نورُ دَ احمدؐ
دَ شجر دَ ذات له نوره محمدؐ علیؓ پیدا دے
په دا باب شاهد حال دے دَ حضرت قول سند
مصطفیٰ دَ علم ښهر دے مرتضیٰ دَ علم در دے
په دا باب روح الامین کا په حضرت نعت آمد
چه غلام شاه دَ درګاه یم دستګیر دَ الور شاه یم
زهٔ قنبر علی به وایم دَ شاه مدح تر ابد
تل دَ خدائے ثنا صفت کا دَ ثنا مدح منقبت کړه
څو دَ مدح په ګلزار روی دَ قنبر علی رسد

۴۰

نن مے بیا دَ ژبے تیغ کا ھسے برید
چہ دَ چا پہ زړہ نفاق ولاړ دَ طوق ئید
دَ منکرخو بہ انکار ژبہ ځا غوځہ
دَ خائن بہ خیانت کاندی پہ دید
حق بہ حق کئي ھغہ چہ څوک حق بین وی
ھم پہ دا معنیٰ عالم صاحب دید
دَ قریشو لہ جفا جورہ خبر شئ
چہ ئے غاش کړ دَ حضرت صاحب شھید
ابو جھل، ابو لھب، دَ کفر سر وو
شیاطین دَ معرکو عُتبہ، ولید
دَ ابو سفیان کینہ لہ مصطفیٰ وو
چہ ھندے دَ میر حمزہ جگر مکید
پہ دینبنو دَ مصطفیٰ ھزار لعنت دے
بے لہ دے زړہ نۂ لرم گفت وشنید
ظالمان چہ سرنگون پہ جھنم شی
رضوان بہ دَ جنت راوړی کلید
دَ قنبر علی مقصود دَ خاطر دا دے
چہ پہ جمع وی دَ حسینؑ شھید

۴۱

کهٔ طالب ئې دَ هغه شاه شهید
دَ یقین په ملک کښې نهٔ ئې تر بعید
په وجود کښې ئې موجود کړنې بې ننګه
کهٔ لرې دَ محبت کفت وشنید
نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَیْهِ ته نظر کړه
چه نزدې دې درته له "حَبْلُ الْوَرِید"
شریعت په حقیقت به څهٔ پوهیږې
چه بې عشقه نشې شاه دیدن خرید
نادیده دَ طریقت منزل مشکل دې
څو چه نشې دَ کامل هادی مرید
دَ دیدن په خزانو به بهره مند شې
کهٔ سالک در کړه دَ معرفت کلید
نوش به کړې دَ معرفت شراب به عشق
چه هر دم ناره وهې "هَلْ مِنْ مَّزِیْد"
عنایت چه دَ مولیٰ وربانډِ وُشی
دا لوئې دَ څخ انوار شی ویدید
زهٔ قنبرعلی غلام یم دَ حُسَینؓ
چه شریف عمر کالونه ئې مجید

## ۴۲

چه دَ ذرهٔ په خاص خلوت ے دلبر بیاموند
په یقین ے دَ دَدُوگونو مظهر بیاموند

چه پرتوے دَ جمال را با ندے وُشه
په معدن ے دَ ذرهٔ گنج دَ گوهر بیاموند

چه ے اصل په زمین سر په سما دے
دَ هغهٔ شجر له بناخ ے ثمر بیاموند

چه نسیم ے له گیسو نه شمیم راوړی
دَ عطار په شان ے ذرهٔ معطر بیاموند

چه ے هیڅ اشیاء خالی له اثر نهٔ دی
دَ یار مخ ے دَ هر شی له اثر بیاموند

چه دَ حسن په تخت ناست وی سلطنت کا
پرستارے ورته شمس و قمر بیاموند

نۀ کل دَ شاه په مهرلوے دولت دے
په لښکرے دَ نفس حکه ظفر بیاموند

۔۔ دا نور عالم په سیم زر نازیږی
ما په عشق کښے دَ ډېر اسیم زر بیاموند

که همت ے دَ ذرهٔ وصل دَ یار غواړی
ما دَ مینے له دولت بال و پر بیاموند

چه عالم ے په یوه دیدن محتاج دے
هغه نازېږودِ په ذرهٔ کښے قنبر بیاموند

دَ قنبرعلی له حاله کهٔ خبر شے
کل مقصود ے په خدمت دَ انور بیاموند

## ۴۳

دریغه راوړے یو خبر چا له د لدار
چه مے خلاص کړی له منت دَ هغه یار

زهٔ دَ عشق نمونو وُ ویستم له عقله
گفتگوے مے هرګز نشی له هوښیار

وُ ښکے نهٔ دی چه په مخ مے ښکاره کیږی
دا خوناب راځی دَ خوږ زړهٔ له پرهار

نصیحت تعویذ مے څهٔ ترے پغاړے
دَ هجران په بستر پروت یم بے قرار

دَ عاشق مثال دَ ګل دے که پوهیږے
پرورش ئے دے دَ مینے له آبشاره

که افسوس مے ستا دَ مخ په زړهٔ کښے نهٔ وو
دَ لا له سینه دَ څهٔ نه دلا دا غدار

په هجران مے بینا سترګے نابینا شوے
مګر بیا مومی بیا آب ستا له دیدار

غنچه وار په پیرهن دَ صبر چاک کړم
که نصیب مے شی دیدن دَ ګلعذار

زړهٔ له درده مے دا خوبیتو نه وُوے
مشتِ جَو مے نمونه د ه له خروا ر

چه فریاد دَ بیلتانهٔ قنبرعلی کړِ
معلومیږی چه ځه زړهٔ ئی بے اختیارَ

۴۴

کهٔ په خویٔ په بویٔ وُه بنهٔ دَ گل په څیر
وایم خان دَ ظفرخان دَ ورشهٔ تیر
چه دَ عمر ماه و مهر ئے په غروب شهٔ
په آستان ئے نوش تمام جهان اندیر
خوږ وند ون وی دَ دوستانو په دُنیا کښے
وایم خان دَ ظفر غم به نشی هیر
هرزند ه به دَ اجل پیاله تر خُلے کا
تر یوه ساعت به نشی تیر و بیر
دغه غم ئے په هیڅ غم نهٔ غلطیږی
کهٔ ئے ډیر غمونه شی تر زړهٔ چاپیر
دغم داغ ئے له زړهٔ کله لرے کیږی؟
کهٔ موجونه ئے دَ و نبکیو کړ بربسیو
تسلی دَ غم دَ تا ئے هومره نشی
څو چه تل نشی دَ وُنبکیو جواهر

عهد شکن دَ خدائے دښمن دے فهم وکړه
په قرآن کښې آیا تو نه دی ظاهر

بد قولی عهد شکنی ډیره ګناه دَه
ګناهونه ځني نه شي کبائر

دَ شهید غسل په خپلو وینو کیږی
ځکه شي له ګناهونو پاک طاهر

غم ښادی کښې زیاتې پښیل انداز کا
کله شي په خروارو لو کله سیر

انور شاه صاحب په حکم قنبر وُوې
خفه ناست دے دَ غمونو په کل هیر

---

## ۴۵

اے شه[1] چه ګل ګل ستا دَ رخسار په چمن راوړو بهار
کاندی بلبل پسے تل تل دَ چمن شور و نثار

زیات کړو زینت دَ جنت حورو ستا رخسار په صفت
مدح که تل تر تل دَ ګل تولی طوطی په نثار

روح شه قالب وته راغب په مراتب دَ عظیم
هر څه کاتب دَ قدرت وکښل دِ تا نقش و نګار

---

[1] نسخه کښې دَ دے نعت پورته دغه عبارت لیکلے شوے دے۔ ردد نعت رسالت مآب۔ غزل قنبرعلی در جواب شاه شرف توابع جلال

ګرځي دا ستا په طلب روز و په شب شمس و قمر
له کواکب د فلک شمع په لاسلیل و نهار

جن انس وحشي طیور کل ستا له پر توشه ظهور
عرش و کرسي ستا له اقباله مدام دي برقرار

مصطفیٰ ختم رسل شاه سبل جوهر کل
له هر آیاته د قل وحي چه په تا کړه اخبار

قنبر دا ستا په شرف را وړ عجب دُر له صدف
که شاهنشاه د نجف ورک ستا له خاطر کړه غبار

تل به کړه قنبر علي نعت د نبي مدح علي
په مناقب د ولي غواړي نجات روز شمار

(۴۶)

نهٔ دے ستا دَ مخ تر نمره الوړ نمر
ستا له مخه شی بے نُور تر اختر تر

چه په عمرِ بنِ عبد ود دِ گذار وکړو
جبرائیل[۱] په زمکے ونیو شهپر پر

چه دُلدل ذوالفقار راغلو ستا دَ یار
کوز دِ کړو دَ هر کافر د سر نه سر

دَ هجرت حکم چه راغے پیغمبرؐ ته
قربانی سر تا تر سر ده سرور سر

زر و سیم دے تر نظره نا منظور وو
مساوی در ته ما شی سا کی و زر زر

څلور سوه اوښ دے ورکړه یو سائل ته
تمامی وو بار په لعلو په گوهر هر

خوارج د نهروان کړهٔ وار په قتل
وو د ستا په لاس قضا و قدر در

چه قنبر علی دِ مدح دُر نثار کا
له قلمه ئے توئے کړو مشک و عنبر

له عمر بن عبد ود دَ هغه کافر نوم دے چه دَ خندق نه ئے را دنګلی او حضرت علی کرم الله وجهه وژلے وو۔ خازن ملت ۲۵ / ۲ ج

## ۴۷

لکه خالص شراب بنالُست کوی له جامَ سَرَ
هسے دَیار شونډے لذت کاله دشنامَ سَرَ

دَ طریقت وضوے وکړه دَصورت په اوبو
دَمعرفت رکوع سجود کړم له قیامَ سَرَ

ما دَ نسیم په خُلے پیغام کوه دَیار په لوري
زړهٔ مے له شوق وُوت وے لاړشه له پیغامَ سَرَ

کهٔ څوک دَ ذرهٔ حقیقت ښهٔ په خُلے وُنهٔ وائیُ
کله دَ خاص خلوت خبره شی له عامَ سَرَ

زهٔ به اول آخر نیدا ریم محبت له رنګه
لکه آغاز چه پیدا شوے له انجامَ سَرَ

ما له کامله تلقین واخست دَ عشق په در سبے
دَ نور عالم په دودے ښهٔ له ننګ و نامَ سَرَ

قنبرعلی دَ شاه صفت کوی دَ زړهٔ په مینے
لکه ساده کاغذ رنګین شوله کلامَ سَرَ

## (۴۸)

ننه مے وَلیده کتاب کښے دَوَمت فال تور
چا په مخ مے نَوَه لیدلے دغه کال تور
نه به فال وه نه به کال وه عجب حال تور
ما په خوب لیدو دَیار دَحسن خال تور
تلوبازه زړه مے په ښندشونه خلاصیږی
یار دَ مخ چاپیر دَ زلفو پسے جال تور
دَ نګاه ناوک ئے څکه کم خطا دی
کمان کړه آبرو مژګان کښے پرو بال تور
دا سپوږمی ئے چه لیده شی په آسمان کښے
یار دَحسن توسن وُ غورزوه نال تور
ګویا شمعے په فانوس کښے تجلی کا
ګل اندامه چه په سر وا چوی شال تور
لکه نمر په روښانی کښے چه مشعل دے
هسے یار دَ سترګو تور دے له مثال تور
فرق دَ تور و سپین په نیک عمل موقوف دے
که خدائے نه کاندی دَ چا دَ زړه افعال تور

دَیار تور و سپین هوواره په کمال دی
دَ تنبر نو ه خدائے تر مکړه په هیڅ حال تور

## ۴۹

ساقی راکه خدائے دَ یاره نوربانه دَعشق خمارَ
ژوندون کله شی بے یاره فکرته وکاهوښیارَ
یاردَ هجره مے زړهٔ داغ دے هریوګل لاله دَ باغ دے
دَعشق زخم بے سراغ دے په حسرت یم له دَګلزار
له تهمته نه خلاصیږم خبرنه یم نه پوهیږم
دَ منصورپه دود کاهیږم چیلے مینے کړم سنګسار
ستی ځان اچوی نارته جاروسته ځے بیلویار ته
مخ رونه ماه غار دے دَ یارته نه ویریږی هیڅ له نارَ
دَیارمخ دے لکه بدر یا مهتاب دَشب قدر
وخاته دَعشق په صدرتجلّی کاله انوارَ
جهان جام فلک ساقی دے دَهرشی په مشتاقی
دَاجل پیاله باقی دے ته غافل ئے څه بلارَ
زړهٔ سوزوی شمع پتنګان پرے کوی جمع
عندلیب دَګل په طمع هیڅ پروانکړله خارَ
محمدی غزل جواب دے دا جواب مے باصواب دے
دَقنبر دا انتخاب دے ګویائی کړه له اسرارَ

له دَ خوکتو دَ میاں عمر صاحب رحمة الله علیه مشهور دی۔

## ۵۰

چه هرچا دَ شهادت افسر پسر کړ
هغو سر دَ دار له سره سر پسر کړ
هغه سر چه دَ سردار و سرداری کا
سردارانو هغه سر قبول په سر کړ
چه دَ ران لړیٔ زینت کاندی له سرهٔ
خدایٔ هغه سر سرفراز له هر یو سر کړ
چه په سر ئې دَ تمام عالم نجات دے
په رضایٔ دَ خدایٔ ځکه ځل سرور کړ
چه دَ خدایٔ دَ پاره سربازی پیدا ئې
سربازئې ئې سردارانو کښے سرود کړ
سردفتر دَ اسلام سر دَ ایمان وه
چه غه میر ځهٔ پیغمبر لوړ په مقو کړ
دَ هغهٔ دَ فخر سر تر عرشه ورشی
چه ساقی ورته عطا جام دَ کوثر کړ
سراسر تمام غزل مدح دَ شاه دٔ
درست کتاب مے ډک په مشک په عنبر کړ
چه په هر درد ئې دَ عقل نظر وُکړ
خوښ قنبر علی دَ خدایٔ دَ علم در کړ

چه په زړهٔ کښې ئې دَ مدحې نُور جلوه کا
دَ قنبرعلی زړهٔ نور مخ دَ انور کړ

---

## ۵۱

چه له مهره سره ئې لبان راته خندان کړ
نمودار په تبسّم دُرِ دندان کړ

سره ئې لبان غنچه دهان چه راته واکړه
په خاطره مینه زیاته جلد خندان کړ

چه په مخ دَ تور و زلفو حلقې کېږدې
آزرده زړونه د مهر په زندان کړ

چه کلام په وضاحت بلاغت وائې
په حیرت به ډوب دَ دهر سخندان کړ

که ئې پو توو دَ ستا دَ مخ و مهوشی
په ګداز ئې لکه موم زړهٔ دَ سندان کړ

زاهدان به وا هد کړې و ته شاکره
که دَ مهر مخ په لور دَ زاهدان کړ

اې قنبره! په آفتاب دَ یار دَ حُسن
په مجرد ماه و ستورو سپېدان کړ

---

۵۲

دیره! زړهٔ مې پاک له شرک او له گمان کړِ
نورانی ئې په انوارو دَ ایمان کړِ

دَ اسلام دارالسلام را ته عطا کړې
دَ قیامت په ورځ مې حشر مسلمان کړِ

په دُنیا کښې مې عزیز لرې قادره!
په ایمان مې ښائسته سر و سامان کړِ

مشرف مې په دوستیٔ دَ خاندان کړِ
په فردوس را ته عطا حُور و غلمان کړِ

سیأت مې حسنات کړِ په خپل فضل
دَ عمل نامه مې پوره ته په آسمان کړِ

دا قنبر علی دَ خدائۓ حبیب له دَرِ په
په ظهور حاضر دَ صاحب الزمان کړِ

## ۵۳

هرچه راشی څه دَعشق په سرجګړ
دَ فولادو په ګوتو ټوټو ونه وی اړ
زلیخا چه دَ یوسف په مخ شیدا شو
له کوکله ئے خته دَ آه لوخړ
ځان ومال ئے خپل تمام دَ یار په نام کړ
کښیناسته دَ فقیرئ ئے په جونګړ
له فراقه ئے دَ سترګو نظیر کم شو
ګرځیده له ضعیفئ ئے په لکړ
چه خبر دَ یوسف چا ورباندے وکړ
جوا هر به ئے وویشل په خوخولړ
چه شیرینے فرمائش په فرهاد وکړ
کوه کن وُسکښته دَ عشق په تیشه تړ
په محنت ئے دَ شیرینے صورت خپل کړ
خسرو واچوله بیا په کښے دوپړ
په کنل دَ بیستون ئے حواله کړو
بر ناحق ئے ورته وُنیوله اړ
دَ شیرینے دَ ماتم غږ ئے ترغوږ شه
په تیشه ئے وځیرله دَ سر دړ

دوشاله دې دَحيات په ځان زره کړه
مځ دې وَلغښتو دَخاوړو په ايمبرَ
عاقبت په هر کمال پسې زوال دے
له بهرام[1] پاتې شوے کورِ خرَ
دَ دُنيا نا دے وي شنډه نهٔ بلا ويښې
کهٔ دې سل ميړونه تيره کا تر شرَ
دَ دُنيا طالبان کله لاس اخلي
کهٔ په خُلې خوري هر ساعت دَغم کوڼَ
اے قنبرعلي دَ وَيلو مزه مکړه
څودِ نهٔ وي داکو ياژبه اَرَ

[1] بهرام دَ عجم يو عادل او سخي بادشاه تير شوے دے۔ چونکه کور خر (دَ خره په شکل يو ځنا ور دے چه سپينے کرښے وي پرے) دَ ښکار ډير زيات شوقين وه۔ نو ځکه ورته بهرام گو د ويلے شي۔ او چونکه ښکار دَ پاره به اکثر ځنگل کښې وه۔ نو دَ صحرا نشين په نوم هم بللے شي۔ ډيرگود اول ځوے او په کال ۴۳۸ ء کښې وفات شوے دے۔ په بهرام پنجم هم ياديږي۔

[2] : سه چه په وصف دَ نوخطو نرمه نشوه
ګونګه بنهٔ ده دَ حسين تړ به اوړ
(حسين)

## ۵۴

چه دَ وصل په شیرین نعمت دَ شور خوړ
البته چه په هجران بهٔ زود خوړ

خدائے نعمت دَ وصل مفت دے عطا کړ
تا دَ خپلے نادانۍ ئے نفس په ووخوړه

دَ سبا طعام دِ نهٔ وه هضم شوے
بیا له حرصه دِ په نیمه ورځے نوړ خوړه

چه د شرع لار دِ نهٔ لیده په سترګو
ځکه ځکه دِ په هر قدم ټکو خوړ

ذو القرنین سکندر حال وته وګوره
چه ئے هند، سنده، ملتان، دهلي لاهور

چین ماچین ایران توران روم له فرنګه
زنګ حبش ئے دَ اقبال دَ بخت پستو خوړ

کوه و دشت ربع مسکون ئے په طناب کړ
بیائے پسه جریبات په آب شور خوړ

په ظلمت کښے ئے طلب آبِ حیات کړه
بیائے نهٔ موند آخر که مو دَ کور خوړ

په بنهٔ خوی قنبرعلی لکه سکندر شهٔ
چه دولت نعمت ئے هر چا کور په کور خوړه

۵۵

چه ئې ذرهٔ دَ عاشقۍ په غم آباد کړ
خوار عاشق بیا له معشوقه طلب داد کړ
په جواب کښې معشوق هسې ور ته وُوے
فلک تا غوندې ډیر خلق نامراد کړ
زلیخې په خوب کښې مخ دَ یوسُف وُلید
په کالونو ئې له هجره داد فریاد کړ
عاقبت ئې دَ هجران بیا له تر خلے شوه
تندے خیر ئې په شیرین پسے فرهاد کړ
څو ملوک دَ بنا پیری ئې جمال وکوت
نور ئې کور دَ بادشاهۍ په مخ دَ باد کړ
په خام عقل دیدن غواړے له خوبانو
کوم عاشق ئې له وصاله خاطر ښاد کړ
بے صبری دَ عشق طامع ستا په وفکړ
قنبر کله په وفا ستا اعتقاد کړ

## ۵۶

ستا دَ غم ژړا دَ سترګو آب را سره یوړ
چې یو تم یې تا به چرې ځتاب را سره یوړ

ستا مستو کاتو ته چه ما لاف دَ جمعیت کړ
ټول مې جمعیت ستا دَ حساب را سره یوړ

کړمه تسلي کوندې په خوب کښې مخ دې ویم
هسې کار دې ؤ کړچه مې خوب را سره یوړ

او ور دَ ستا دَ مینې چه زما په خطر بل شه
ځګه رقیبانو زړه کباب را سره یوړ

ما چه محبت له نوره خلقه په حجاب کړ
مینې په شتاب مې غم حجاب را سره یوړ

کړې چه رحمان مهمند سوال دَ دې غزل ؤ
دا بنکلې غزل مې په جواب را سره یوړ

ما قنبر علي دَ ثواب فکر کړه په عشق کښې
دا ثواب مې هجر په ثواب را سره یوړ

۵۷

چه ئ نشوم مشرف له قدمبوسَ
ځُله مے ځکه شوه له کرده دَ افسوسَ

دَ فراق نامه مے وُ کښله په وُښکیو
که دِ خوښه جدائی وی پکښے وُسَ

عارِ دَ کونټوے دیدن په پلښو روانئی
دَ دلبر و دَ دیدن کلونه یو سَ

دَ دُنیا بنا دی دَ غم سره یوځائے ده
لکه گل هسے اغزی لری پلوسَ

که دَ وصل حاصل نه ئے قنبره!
ذره په خیال کښے یاد دَ وصل زلفو بلوسَ

## ۵۸

تفاوت دَ خوئ لری کس و ناکس
څهٔ نسبت لری هائ سره مکس
په خلقت او مال و پرکه مساوی کا دی
دَ شاهین دَ باز خوی نهٔ وی دَ کرکس
کهٔ ئے ذرهٔ کښې تجلی دَ نور جلوه کړه
کهٔ سینه ئے زنبورخانه شی دَ دَشوَش
عشق عطا دے چه خله ئے په چا وشو
په تالاش ئے کله موهی بوالهوس
کهٔ په قدر ئے خوک پوهه شی لوئے نعمت دے
چه په یاد ئے خدائے تیریږی هر نفس
په حضور دَ ذره طاعت دُر و کوهر دی
بے حضوره بندگی ده لکه جَس
دَ یو ئے جوئے نه بار آب نم اخلی
په یوه بناخ کښې ئے گل وی هم خار و خس
ناشکری دَ هر بنده دَ ځان تاوان دے
چه بدله من سلوا کا په عَدَس
په معنیٰ کښې کس ته یواشارت بس دے
دَ ناکس غوږ و نه کله اَوری لبس

پڅخرۀ بار دَ کتابونو اثر نکړه
په دا څۀ شی کۀ ئې پټ کړې په اطلس
په ښۀ خوئ له خلقه ژیست کو قنبره!
کۀ خدائې درکه دَ نیکئ دسترس

---

## ۵۹

دَ الله دَ ذات له نوره لرے سر پوستون هَس
لکه امر دَ قدرت شو په کُن فیکون هَس
دَ احد او دَ احمد ترمیانه یو میم تفاوت دے
میم مرآت دَ کائنات چې دَ دے میم دے مضمون هَس
دَ علی رض او دَ علی رض په میان کښې فرق دَ نقطے نشته
لکه عین دَ قدرت چه لری سیر دَ سکون هَس
فاطمه رض دَ نور سراج ده دَ مشکات مصباح زجاج کا
په معنیٰ دَ نور سراج ده دَ جنتو خاتون هَس
نور دَ نور په لور طلوع کا سر دَ سر په لور رجوع کا
دَ حسن رض خلعت ندغون دے دَ حسین رض دے گلگون هَس
پنجتن پاک دوازده امام دی دَ اسلام دار السلام دی
دَ قدرت په کارخانه کښې لکه دُرِّ مکنون هَس
هر یو بیت زره په خلوت وه دَ نجف گنج دولت وه
ئې په حکم دَ شاه ووت له درونه بیرون هَس

محبت مې په علیؑ د ے عزیزه یقین مې په ولیؑ دے
اېښې ماله یکدله دے سرتخیال په زنګون ځی
څورا غلے په عالم یم دَ فراق په وښکو نم یم
دَ قنبرعلی پخائے په نه وی بل یو محزون ځی
په دا فکر دَ قنبرعلی دَ چا علم دسیری
انورشاه په حکم دانغے دا غزل په قانون ځی

---

## ۶۰

که نه تمات کړے دَ هوا او دَ هوس لاس
وبه نه نیسے ولاس نه دَ ناکس لاس
دَ ناکس ولاس نه لاس مه نیسه وروړا
چه دا لښے پخپل ځان وی پیش ولیس لاس
لکه نحل[1] په ښه خوی عسل پیدا کړي
په ګندګئ آلوده نه لکه مګس لاس
حسنات دَ عمل اجر یو په لس دے
نیکی کړه چه خدائے دِ نیسی یو په لس لاس
په دُنیا کښے چه طاعت دَ خدائے څوک نکا
عاقبت به په حسرت منږی عبث لاس

---

[1] مچئ دَ قلمی نسخه

قناعت صبر توبه دَ آخرت کړه
دَ یقین په قوت مات کا دَ وسواس لاس
لاس په لاس هغه ځوانان لږ چرې کړی
چه ئې پاک په طهارت وی له اوس لاس
هر نفس دَ مولا ذکر کړه قنبره!
څوله تا نه کوتاه نه وی دَ نفس لاس
یَدُ اللهِ فَوْقَ اَیْدِیْهِمْ سند کړه
دَ قنبر علی دے بس دا مقدس لاس

## ۶۱

که دَ بادشاه دَ دین په تخت وُکا جلوس
ظالمان په له خپل ځانه شی مایوس
چه مهدی دَ عدالت په مسند کښینی
په فریاد به شی مظلوم دَ الاخروس
انتقام به دَ مظلوم له ظالم واخلی
په هوس به رقص کا دَ عرش طاؤس
په خدمت به ئې حاضر دَ دین ارکان شی
تیر شو ډیر ځله بزرګان د هر الوس

---

ا۔ دا لفظ "هوس" معلومیږی

اصطفا به په عالم شی سره جمع
مدینه و له عراق و هُم له طوس
په سزا به گرفتار اهلِ ضلال شی
په جهان به شی تازه دَ دین ناموس
چه قنبرعلی دَ مدح دُر نثا کړهٔ
لب په لب شو بیا دَ فکر په عروس
چه نظر په نورانی مخ دَ انور کا
منور به شی دُ ذرهٔ بیت له قدوس
دَ قنبرعلی نظر شاه په جمال دے
حباب کله شی دَ شمع په فانوس



که مُحان و مُباسے دَ طمع د لباس
دَ مقصود شاهد به وُنیسے په لاس
په دا طمع کبنه حاصل څهٔ دَ میخ نشته
وسوسے دی په صورت کښے دَ خناس
که دَ عشق دَ مسیحا دِ سر یکار شی
مُرده دل به دِ ژوندے کړه له انفاس
دَ جهان په خرابه مهمان خانه کښے
څوک به څهٔ خوری دَ نسکور فلک له طاس

بے نصیبہ تلاش هیڅ فائدہ نۂ کا
کهٔ څوک شی رفیق له خضرٔ له الیاسٔ
په هر کار کښې توکل درسره بویه
چه نجات درته حاصل شی له وسواس
کهٔ په گنج دَ قناعت رسیدے نشے
لاس کوتاه کړه دَ حاجت له التماس
چه مایه دَ قناعت ورسره نهٔ وی
دریه درگرځی دَ حرص له افلاس

په خلعت کهٔ د رحمت ئے سرفراز کړهٔ
امیدوار قنبرعلی له حق شناس

---

## ۶۳

کله حُسن وُدریدے شی دَ بلقیس
یارے ستا دَحسن نهٔ لری تجنیس
خط و خال دَ حورو ستا له خط وخال دے
دومره فرق له خانه ولا ستا عکیس
ستا حرم دے زما ځائے دَ رقیب نهٔ دے
په جنت کښے دخل نشته دَ ابلیس
ستا له قدہ له قامت سره به سم وی
کهٔ عصا داؤد ری موسیٰ خلعت ادریس

کهٔ خوبان دَ جهان ټول شی درتہ جمع
دا ستا حُسن دے پہ واړو کښے رئیس

افلاطون[1] بہ پہ حیرت پہ خُم کښے کښینی
کۂ پیدا شی ستا دَ مخ ارسطالیس

خوب خندا ئے نور لہ هیڅا سرہ نشی
څوک چہ ستا لہ محبتہ شی اَنیس

ستا دَ حُسن صفت څو قنبرعلی کړہ
دَ قدرت کاتب کښلی[2] خوش نویس

کۂ قنبرعلی یو ځلے سرفراز کړے
نو بہ شی مدام لہ خضرؑ هم جلیس

---

[1] افلاطون بہ خیریت پہ خُم کښینے کښینی (قلمی نسخہ)

[2] نسخہ کښے "کہ وشی" دے۔

## ۶۴

چه خبر شُم[1] دَ ساقي دَ خُم له جوشَ
په ما هم څۀ کرم وکړۀ مے فروشَ

يو دِ جام دَ ميو هله ساقي را کړه
چه دِ ماغ مے شي خالي له خام هوشَ

ابدي ژوندون مونده شي ستا له جامَ
دا پيغام مے سحر بيا موند له سروشَ

دے رنځور زړۀ ته مے هغه شراب ورکا
چه ئے يو څاڅکے اثر لري له نوشَ

دَ نفاق دَ عالم زُهد به معلوم شي
که جواب له مخه وا خلے خرقه پوشَ

معنوي حساب مے نۀ واخست له ميانه
چه مے ژبه دَ سوسن ليده خاموشَ

په تحقيق قنبر علي دَ ستا غلام دے
دَ خدمت حلقه ئے زيب کوي ده ګوشَ

---

[1] په متن کښې دَ "شم" پځائے "شے" کښلے دے۔

(۶۵)

ستا بیلتون کړه دا نه هسې بلا پیښ
چه ئې پیشه کړه دَ مرګ روږدُ نه خوېش

له پیزوانه چه ئې چین په جبین راوړے
نور عالم ئې څرنګ نهٔ ژاړی له نیش

دوراندیش خاطرے عشق کوتاه اندیش کړ
پروا نهٔ لری له عقله دوراندیش

دَ اشنا دَ خوږ و لبو صفت څوکړم؟
په کش خیال ئے ژبه وُنښته له سریش

که ئې دِ کیف دَ خونخواری ه وی څهٔ کم شوی
ناشه بیا ئے دَ خاطر و نیسه بیش

دَ قنبرعلی ګفتار چه لذیذ نهٔ دے
بارے ذره ئې نهٔ سهیږی له مونیش

دا جواب قنبرعلی حمید دَ ګغزل کړ
نکړه هیڅ را بانسه یار دَ مهر ویش

٦٦

ذره ځے بیا غواص دَ فکر په دریاب شَو
که هر باب له اولوا لعلم اولوا الالباب شُو
اولوالعلم اولوالالباب دوانده امام دی
چه عارف ے نه په علم دَ کتاب شو
معنوی کتاب ځے علام ربانی دے
جاهلانو ته خپل جهل حجاب شُو
موده تیره دَ زړیمانو دَ سترګونو دے
منافق په سترګو رونداو لکه جاب شو
په قیام رکوع سجود هغه پوهیږی
چه حاضر دَ شاه دَ ورځو په محراب شُو
خوا که محتوا که به ئے خوناب دَ ووی له سترګو
چه ئے زړه دَ محبت په اور کباب شو
دَ قنبر علی غزل دَ شاه صفت دے
هر یو حرف ئے معنوی دُر خوش آب شو

(۶۷)

چه داخل شوم دَ ساقي په میخانه کښې
دَ یار مخ مې وکیدو په پیمانه کښې

وُس ئې کنج دَ میني پټ ساتم لمخلقه
مُدام پروت یم یار دَ غم په وِیرانه کښې

تل کرم داسې دَ وُښکو له فراقه
که دَ وصل وریږه وی په دُردانه کښې

دَ ارواح مارغهٔ مې تل ساتهٔ گلشن کښې
زلفو بند گرد دَ دیدن په آستانه کښې

دَ دُنیا له خلقت دا هم غنیمت دې
چه دَ یار نامه راوړی په افسانه کښې

شمعرو به دلسوزی وربانده ئې کا
که دَ صبر طاقت وی په پروانه کښې

مغني خوش نوا راشه خدائې دَ یاره
سوز و ساز راوړه دَ عشق په ترانه کښې

یار دَ خیال مارغهٔ که راشي چرچرې
ځائې به ورکړم دَ زړهٔ په آشیانه کښې

دَ هجران علاج په څهٔ قنبرعلي کا
چه اخلاص نهٔ وی په زړهٔ دَ جانانه کښې

(م په اعز قلمي نسخه)

## ۶۸

خدائے نصیب زما دَ عشق کړ دَ قسمت په حواله کښې

وَس به څهٔ معاذرت کړم هَوا قرار په قباله کښې

فرښتو ئے خمیره کړه دَ صورت خاؤره[1] لښه

څکه خپل ژوندون زهٔ وینم یار دَ لبو په پیاله کښې

کوندے درد دَ محبت ے پلاس راشی روغه خلقه

په دے نیت ے ځان لاهو کړ پیادؤ ښکو په پیاله کښې

ستا په وصل کښې دَ هجر فکر هسے معلومیږی

لکه خارچه راؤځی دَ حلوا په نواله کښې

غوږوندے په دُنیا کړم دَ خلاصی ئے ګ نشته

چه ے یو ځله زړهٔ بند شو ستا دَ زلفو په جاله کښې

تورے وینے ے دَ زړهٔ دی که ے کسی دَ سترګو

عکس ئے ستا دَ خط خاتون دی که داغونه په لاله کښې

دا جواب قنبر هغه کا چه عبدالحمید وئیلے

خط په مخ دَ صنم راغے کسپوئے شو په هاله کښې

---

[1] خاؤره (دقلمی نسخه)

## ۶۹

چه ظهور دُ کا آفتاب دَ مخ شعاع
تفرقه پریوځی دَ ستورو په اجماع

په اسرار دَ نور آګاه مطلع او منور
بې خبر له علمه څه لری اطلاع

په خلاف دَ بزرګئ سے دعوه نشی
سامع بویه دَ اسرار په استماع

چه دَ خدائے په در لوئی کړلو باطل دے
که سر لور دُړی دَ کثرت له ارتفاع

دَ نخترو صنوبر وُنه بے جوره
بیهوده بده میوه کا څو طماع

داهوه دِ دے وُنے دَ سوده پائنے
دَ هر چاځ دَ میراث خپله او ضاع

له واحد شجره نور سِرِّ ظهور دی
نور عالم دے مختلف انواع انواع

په قنبر علی نظر دَ انور شاه دے
مداح کوے دَ مرتضیٰ شاه شجاع

۶۰

## ٧٠

چه په زړهٔ دَ خفي ذکر شي سامع
هغه کس به وي دَ کل عالم جامع

له هغه بنده راضي پروردګار دے
چه مدام دے په درګاه دَ حق خاشع

چه سجده په خضوع او په خشوع کا
دَ یقین نمر ئے دَ زړهٔ په ملک طالع

ګاه دَ عشق دَ یوسف خریداري کا
ګاه مالک دَ زړهٔ په حُسن تني بایع

ګاه الف شي ګاه لام شي کله هٔ شي
ګاه قایم ګاه ساجد ګاه راکع

شفاعت به دَ صالح وطالح وُکړه
که په زړهٔ کښې شي دَ نیک وبد شافع

چه ثنا صفت دَ خدائے کاله اخلاصه
حمد و نعت مدح دي دَ ځان نافع

آئینه به ئے دَ زړهٔ صفائي واخلي
که تل فکر په صفت کا دَ صانع

دَ قربت مقام له غیب دَ هغه کس دے
چه دَ خدائے په لو خاضع وي هم خاشع

خدائے ئې په لاس کښې په قدرت آدم خیر کړ
له سجدے ئې کړ ابلیس کبر مانع
چه ئې ځان کړلو رجیم دَ حق له لارے
تابعان ئې دی دوزخ وته راجع
زهٔ قنبرعلی طالب دَ هغه کس یم
چه عیسیٰؑ، خضرؑ، الیاسؑ ئې دی تابع
دَ قنبرعلی درخواست له خدایه دے
چه پخپل نصیب راضی یم هم قانع

(۷۱)

چه وجد نهٔ لرے په شمعے دَ سماع
هغه نهٔ لری دَ ذوق وشوق متاع
چه په عشق له خپله خوده شی بیخوده
په هغو دَ محبت حکم مطاع
عشق دَ نفس له خاصیته مُبرّا دے
مقدس خمیرهٔ پاک دے له جماع
فوازان دَ عشق له شوقه پیدا کیږی
دَ مریم پشان جُدا لری اوضاع

له تابع (قلمی نسخه)

پہ عالی مقام دَ عشق رسیدہ گران دی
ورک دے عقل ئے عاجز له ارتفاع
چه دَ عشق هماۓ په اوج دَ قدس الرشی
پاتے شی په زمکے عقل خام طباع کا
له فاۓ سره سلوک دَ عشق بامفه
مسکین یتیم کاندی له یو یو صاع
په اسیر باندے عطا دَ خپل طعام کا
دَ محبوب عاشق غم نهٔ کاله اوجاع
چه دَ عقل لوئے دفتر فرد باطل کا
څهٔ عجب علم لری دَ عشق مصراع
چه قنبر علی دَ مدح گوهر راوړو
دَ عشق تاج ئے کړ په سر شاه شجاع



اے په ذات دَ امامت دَ نور چراغ
رسالت واخست کمال ستا له ابلاغ

چه دَ ستا دَ ذات صفات په شبه وائم
دَ طوبیٰ عطرے بوئی کړه له دماغ

دا دَ شاه فضل کرم دے که ئے نوش کړم
دَ کوثر باده ده مدح له ایاغ

اختلاف دَ سلوک له لارے نۀ کاږ
هغه ستر گے چه فتاوی له مازاغ

شاه له مهره مے کل داغ په خاطر کړ
لا علاج مرض صحت مومی له داغ

دَ قنبر علی چه وُ بینکے په مخ وُ وری
دا اثر دے دَ زخمی زړۀ له سراغ

همه واره عنایت دَ انور شاه دے
چه ئے مدح کل راوړم دَ زړۀ له باغ

۷۳

چه دَ یار په چمن خط راغی ملفوف
شوم حیران په سرنامه دَ هر حروف
دَ دے خط په مطالع دسیه ګران دی
دلته نهٔ رسی دَ هر سړی وقوف
له باریک خط مضمون هسے معلومیږی
دَ یار حُسن دے په دا صفت موصوف
دا په دور دَ قمر هاله پیدا شوه
یا که مخ دَ مهر وُنیوُه کسُوف
دَ قلم کیت فریاد راته دا وُکړهٔ
چه عنان دَ عزیمت کړه ترمعطوف
چرے نهٔ وی چه دَ زړهٔ سر دِ پرے غوخ شی
هر جوهر دِ دے خط سر دَ سیوف
زړهٔ مے هم له دے کلامه عبرت واخست
ویلے بس کا نور دغه ذکر موقوف
په شیشه خانے دَ کانی کڼ ارمکړه
په یوه کڼ اربه مات کړے سل ظروف
حسن خط دَ یار هم دَ خدائے په امن
دَ بنده تقصیر کهٔ عفوه کړه روُف
دَ قنبر له دے کلامه غرض دا دے
چه همت کاندی دَ طبعے پر مصروف

۷۴

چه دَ عدل تُوره وُ څیُ له غلافَ
ملک به خلاص کا دَ ستم له اختلافَ
زنګ دَ ظلم چه په زړهٔ دَ جهان پروت دے
په صیقل به دَ انصاف کا سینه صافَ
چه سراج دَ دین ظاهر په بیت الله شی
مومنان به شی په جمع له اطرافَ
ظالمان به سزا بیا مومی دَ ظلم
مظلومان به سرفراز شی له انصافَ
چه آفتاب دَ امامت شعاع پیدا کا
درست جهان به نورانی کا قاف تر قافَ
دَ یمین اصحاب به بیل کا له شماله
چه ساقی دَ نور جلوه کا له اعرافَ
دَ طوبیٰ دَ ګلو هار به کړه تر غاړے
کل حوران دَ مومنانو له زفافَ
هر مقصود به دَ قنبر علی حاصل شی
چه ژړیږی دَ حُسین له طوافَ
خداوندهٔ! په حرمت دَ شاه حُسین
شاه په مخ کښے دَ قنبر ګناه کړه معافَ

۷۵

ډَ دلبر وَ جدائی نہ ئے لہ پسحنا کَ
شکوفہ شی پہ بھار کیئے سینچاکَ

چہ ئے زھر دَ ھجران تر حلقہ تیر شی
صحت موھی بیا دَ وصل لہ تریاکَ

چہ غنچہ کلہ ورق ورق جدا شی
نور دِ وُحیُ دَ اختیار واک لہ واکَ

درستہ شپہ ئے پہ ژړا شی شبنم ستوی
چہ خبر شی دَ بُلبل لہ دے تپاکَ

دَ بلبل پہ زړہٗ ھالہ شی لیے بیلے
چہ دَ گل څھرہ آلودہ وی لہ خاکَ

آہ فریاد ورتہ دَ زړہٗ لہ سوزہ وُکا
چہ پہ څہٗ حال شوے اے گلہ! ھوسناکَ

گل دَ حال پہ ژبہ وُ وئیل بُلبل تہ
دائےٗ حال دے چہ څوک وُحیُ لہ ادراکَ

گل مقصود ے لہ څپل زړہٗ گفت وشنید ے
چہ ے تل څھرہ پہ وُ ښکیودہ نمناکَ

دَ قنبر علی غزل دَ بلبل نہٗ دے
نور گلونہ چہ پرانہٗ وی لہ خاشاکَ

۷۶

ستا دَ مخ په ورق زیب کا عرق رک رک
کهٔ عرق دے دَ گلاب په ورق رک رک

کهٔ شربت دَ وصال را کړے گونده روغ شم
په صورت کښې مې کړی رمق رک رک

مدرس چه ستا دَ حسن په درس راشی
مهر تو ے کا په ورق دَ سبق رک رک

دَ مخ نمر وه په مغرب دَ زلفو پټ کړه
څرګند یږی ماه نو له شفق رک رک

دَ خوبانو په بازار کښې بیا موندهٔ شی
دَ دیدن روغن دَ زړهٔ په طبق رک رک

گوندے وی چه قبضه پلاس کښې واخلی
په دانیت دَ مهر پنباخ شه الق رک رک

دَ قمبر علی په زړهٔ مهر دَ ستر گو
نمود کا لکه سم گل کښې ابرق رک رک

## ۷۷

چه د یار جدائی تیره شي تر تا نګ
څو دِ زړهٔ غواړی دَ غم په زانګو زانګ

چه دَ وصل صبح دم ګریوان پاره کا
مشتاقان نهٔ وی محتاج دَ چرګ له بانګ

دَ وصال په پچا وُړو بانده پرېکیږی
چه ترغوږه تیره وی دَ هجر کانګ

په صورت سیرت هرشے جدا جدا دی
دَ طوطی شباهت بَیل دے له چلانګ

په حوالهٔ دِ نهٔ تلاش دَ ریاضت کړو
په خواهش دَ زړهٔ تیتیږی تاند څانګ

په صراط یو ساعت معطلی نشی
که مے یار تینګ کړی دَ ریاضت له تانګ

دَ قنبرعلی هوار ګفتار شیرین دے
دانایان پسند وی قدم له دانګ

## ۷۸

خوچه نکړے دَخپل زړهٔ معرکه بوګ
بیا به نهٔ مومے نجات دَ غم له سوګ

عاقبت به غه اصلی وطن ته درومم
په پردی وطن به څوک کوی استوګ

دربانان به ئے درګاه و ته پرے نږدی
څوچه نهٔ وُحیَ جوګی دَ زړهٔ له جوګ

که دَ زړهٔ غارِے څهٔ کوږ صورت دِسم فی
دَ صورت کجی دَ غم په تیشه توک

ما وے کله به مقصود دَ دهٔ حاصل کړے
په خندائے راته وُ وئیل چه هُو ګ

دَ قنبرعلی کلام څکه رنګین شو
دَ ګفتار خوارهٔ ئے بیامونده له څوګ

---

له هوګا راندو

## ۷۹

چه په وُبنکو شوه دَ ستړګو لن تنګَ
ذرهٔ په وینو ﺀ شهره شوه له ګلرنګَ

په بنه ُخویٔ و بے خوی دِ اثرنه وی
چه ﺀ ذرهٔ پریوځیٔ دَ مینے له کرنګَ

هغه کله په مهجورو حسابیږی
چه په خوب کښے وینی ستا بشرخوشرنګ

خال دِ ټیک په سیوری ناست زهٔ حیرانیږم
دا کُدا چا پریښنو دهٔ دَ شاه ترشخنګ؟

خال په پټه خُله دَ حال په ژبه وائیٔ
دَ شاهانو التفات وی له ملنګ

کهٔ په دے دِ با ورنشی بل دلیل دے
شمعے تل وی همنشینه له پتنګ

دَ پتنګ و هاله شمعے وته ویرشی
چه ځان اچوی وَاوروته بے درنګ

دَ بلبل او دَ بورا په حال نظر کړه
کهٔ ﺀ سرکا څوک میدهٔ دَعشق له سنګ

دَ ګلزار له محبته به وانه ُوړی
کهٔ په ذرهٔ وُخوری زرغشی له خدنګ

دَ خو بانو په بازار هغه سودا ۔۔۔ کا
چه سودا واخلي په سر وُ دَوحیٔ له ننګ
دَ یار مخ به پکښې څهٔ وینې قنبره!
چه دَ زړهٔ اسنه دَ لاندے شي له زنګ
اے قنبرعلي دیدن به دِ روزي شي
که دِ زړهٔ خلاص شي دَ هجر له ننګ

۸۰

چه عشق راشي په جاه وجلال دَعقل
وُړي ئے مخ ته آئینه جمال دَعقل
لکه عشق چه خدائے پیدا کړ بے مانندهٔ
هسے نیشته په عالم مثال دَ عقل
چه دَعشق په صحرا ګرځئ وُچے شونډے
عاقبت به نوش کا جام زلال دَعقل
هرچه زهر هلاهل دَ هجر وُخوري
شفا کله مومي بے وصال دَعقل
که هر څو دَ عشق په حال صاحبِ جمال ئي
خو آخر به شي ګویا په قال دَ عقل
که جلوهٔ دَعشق له نوره په مخ پریوځئ
حُسن کا نبا الَست په خد وخال دَعقل

په کمال به وُرسم دَخدائے په حکم
چه مُرید زهٔ په یقین دَ کامل پیریم
کامل پیر دے انور شاه صاحب باورکړه
زهٔ قنبر علی ئے حکه دا مِنکیر یم
په دوو کونو آزاده قنبرعلی دے
چه بندی دَ شاه دَ مینے په زنځیرؤ

---

## ۸۲

ابتداء مے په نامه دَ لا دَ قدیم
واحد اول آخر موجود ذات کریم
دَ الله اسم دے ذات دَ همه اسمو
دَ صفات نوم ئے رحمان دے هم رحیم
دَ صفات له موج ئے کل عالم پیدا کړهٔ
کاف و نون ئے دے مظهر دَ هر عدیم[له]
امانت ئے عرض په ارض و سمٰوات کړهٔ
په برداشت ئے طاعت نهٔ راوړهٔ سقیم
په انسان دَ امانت محبت زور شهٔ
په اختیار ئے کړهٔ قبول په ډیر تعظیم

---

[له] قرآن پاک کښے الله پاک فرمائی۔ چه هغه دَ څه څیز اراده وُکړی۔ یا دَ کوم کار فیصله وُکړی۔ ورته وُوائی "کُنْ" (وُشه) نو وُشی۔

خلیفه دَ خلافت په مسند کښیناست
عقل کل ئې شهٔ دَ زړهٔ په ملک ندیم
دَ آدم صورت ئې دوغ کړله قد رته
سرتر پایه جوړ دَ زمکې له ادیم
ملائکو ته ئې امر دَ سجود کړ
واړه و سر په سجو دکیښوهٔ په تسلیم
یو ناری ابلیس انکار ورځینې وکړ
هغه دم له هغه درهٔ شهٔ رجیم
سرفراز ئې په وَلَقَدْ کَرَّمْنَا کړو
شهٔ آدم دَ نبوت په تخت مقیم
نوح نبیؑ ته ئې زر کاله عمر ورکړو
دَ طوفان له موج ئې وساتهٔ سلیم
انبیاء و اصفیا په هر ایّام وو
په خلیلؑ ئې نام آ ورکړهٔ ابراهیمؑ
چه قربان ئې خپل فرزند دَ خدائې په نام کړو
خدائې عطا کړه په خلیل اجرِ عظیم
په معنیٰ کښې ئې معدن دَ انبیاء کړو
معرفت ئې موندهٔ فِی قَلْبٍ سَلِیْمٍ

و موسیٰؑ ته ئې په طور دَ نور ظهور وهٔ
سرفراز شهٔ په کلام دَ رب کلیم

په عصا ئې جلوه کړيد بيضا کړه
نور ئې دروسته په لوری دَ غليم
له حشمه ئې فرعون غرق په يم کړه
دَ کليم له زړه ئې ورک کړو خوف و بيم
سليمانؑ ئې دَ داؤدؑ قائمقام کړو
چه هوکز نه وه محتاج دَ زر و سيم
صلاح کار ئې آصف ابنِ برخيا کړو
دَ بلقيس تخت ئې حاضر کړه په تکريم
زکرياؑ ته ئې يحيیٰؑ فرزند عطا کړو
چه ئې زړهٔ دَ خدائے له ترسه وو حليم
دَ مريم په گريوانه ئې عيسیٰؑ پو کړه
له روح الامين ئې وا خسته شميم
په هغه شميم ئې مړي دغولو
افتخار ئې وه دَ فقر په کليم
وُس قلم په سر منزل دَ مطلب راغے
بيا دَ زړهٔ په باغ تازه راغے نسيم
دا همه غرض دَ نور و سر ظهور وُه
دَ لولاک په معنیٰ زړهٔ کا مستقيم

دَ هاتف ندا دا هسے راته وُشوه
چه دا علم دے له حق دَرته تعليم

دَ قرآن په آیا تو نو فهم وُکړه
په دا فهم کښې ده نفح دَ فهیم
اے قنبر علی دغه علم لَدونی
خوک موندلے شی داعین ولام ومیم
کهٔ ے مدح دَ قنبرعلی تر غوږ شی
رضوانان به ئے داخل کا په نعیم
انور شاه صاحب دَ مهرله دولته
دَ قنبرعلی مقام بیت الحریم
کهٔ دا نور خوک سلطنت په زرو سیم کا
دے قنبرعلی سلطان شعر په اقلیم
کهٔ پوښتنه طالبان دَ دے غزل کا
منتظم شوے فِی اَحسَنِ تَقوِیم

۸۳

کهٔ خبر شې د قاله له احترامَ
دَ کاذب وینا به وکړې حرامَ
بشارت په نبي مَنْ جَاءَ بِالصِّدْقِ
صدقه به اشارت وي له امامَ
دَ رسول کلام دَ حق له معرفت دې
دَ حاصل وینا مَنْ يُحْيِي الْعِظَامَ
دَ کامل خبره بند دَ ه زړهٔ په سرکیږي
چه مذکور کاله صلوٰة وله صیامَ
دَ کلام و حقیقت و ته دې نظر کا
هسې نه چه بل کمان وکړې اعظامَ
دَ قنبرعلي دَ زړهٔ یقین حاصل شي
چه ئې مې نوش کړهٔ دَ حقیقت له جامَ

۸۴

محبوبه چه وُربل خور کاندی پو هیږم
اوربه بل دَچا په کور کاندی پو هیږم
درست جهان به مے په تورسلامت تود کا
که را پورے دَعشق تور کاندی پوهیږم
سمند رپشان دَ اورپه میان کښے پائی
چه دَچا په کور بل اور کاندی پوهیږم
په سپین مخ به صد هزار جهان آباد کا
که خراب ئے زړهٔ لاهو کاندی پوهیږم
په کریوان به ئے خرمن گل دَچمن کا
که پرے گډ دَ دوحو لو کاندی پوهیږم
چه دَعشق په خطرناکے لارے درومی
په ژړا به پلاړو مور کاندی پو هیږم
دَغمزو له تورهٔ و کله نجات مومی
که فلک په سر نسکور کاندی پوهیږم
چه دَعشق بے بها دُریتیم غوارې
ځان به ډوب په آب شور کاندی پوهیږم
یار دَمخ په شکل گل په چمن نیشته
گل به حُسن ځنے پور کاندی پوهیږم

دَعبدالقادر جواب قنبرعلی کا
"یار مے تله دَباغ په لور کاندی پوهیږم"

م نیرے رقلمی نسخه)

## ۸۵

چه مے سترګے په ژړا ژړا شِی نم نم
دَ خاطر غبار مے شی وَرسره کم کم

دَ یار سترګے هسے دم کوی له سترګو
لکه کا چه غزالان له میړودم دم دم

تور و زلفو مار خوړلی نه کړی غیږی
که په دَم دَ مسیحا دمیږی دَم دَم

کړے کړے دَ فراق وُښکے بهیږی
که دَ صبر په خُله وایم ورته زم زم

سرو قد که هر څو پورته پورته کیږی
ستا له قد وله قامته نهٔ وی سم سم

غم دَ هجرته طاقت دَ غمخور نیشته
خهٔ به خوری زما غمخودی دغه غم غم

طولانی کلام سامع ته ملال پیښ کړ
نیسه اے قنبرعلی! دَغزل تم تم

دَ زړهٔ سترګے دَ قنبرعلی له شوقه
دَ یار خیال ته والیُ بر برړاشه جم جم

۴۶

زهٔ چه مدح منقبت دَ بو تراب کړم
مے باید چه له هر حوف تصنیف کتاب کړم
نهٔ خطاء ے تر ځلے ډ دا ته غلط شوم
په کریوان کښے ځرنګ پټ نور دَ آفتاب کړم
د مولا مدح محیط زړهٔ مے شیشه ده
په شیشه کښے به ځاے ځرنګه دریاب کړم
که ورق لکه کاغذ ارض وسما شی
مرکب ئے دَ تما مے دُنیا آب کړم
لکه څاڅکی دَ شبنم دَ ګل په پاڼو
یا په مخ دَ محیط ځاے لکه حباب کړم
حد پایان دَ شاه دَ مدحے معلوم نهٔ دے
بیاده عقل کله دَ بحر په پایاب کړم
زهٔ د نیاز په زمکه سر په سجده لیږدم
چه ئے زهٔ حاضر د وروخو په محراب کړم
که دَ فکر نظر وکړم دے اشعار ته
دَ شاه مدح منقبت په انتخاب کړم
انور شاه صاحب ارشاد را ته وکړو
زهٔ قنبر علی ثنا دَ اولوالالباب کړم

## ۸۷

کهٔ زړهٔ منډ دَ خوبانو په نګاه کړم
په هغه نګاه له سوزه دَ زړهٔ آه کړم

ګاه له خُلے ګاه مے له سترګو وینے دومی
چه دَ یار له غمه بشکته پورته ساه کړم

راز دَ مینے کهٔ هرڅو ساتم له خلقه
په ګریوان کښے دَ نمر مخ څرنګ پناه کړم

لب دَ یار آبِ حیات دی نهٔ ئے مومم
دَ زلفینو په ظلمات کښے ئے ګمراه کړم

چه ئے پریوتم په چاه دَ زنخدان کښے
څکه ځکه ئے صاحب دَعزوجاه کړم

کهٔ دَ وصل په بهار ئے تازه ګل وُم
دَ هجران په وار ئے وُچ لکه ګیاه کړم

منت بار دَ یار دَ سرو لبو له خیال یم
په اسرار ئے دَ غنچه دهان آګاه کړم

مدعا مے په زړهٔ ستا دَ مخ دیدن دے
وِ دِرګاه ته کهٔ لاس پورته سحرګاه کړم

زهٔ قنبرعلی دَ فکر له دولته
ستا دَ دَر په خاورو فخر لکه شاه کړم

## ۸۸

چه دَ چا په محبت صافه سینه وی
دَ هغو له زړهٔ یکسو کبر کینه وی

په ساحل به دَ مراد وی رسیدلے
چه څوک ناست دَ حضرت نوحؑ په سفینه وی

دَ هغهٔ په منزلت به خدائے پوهیږی
چه مشهور په حدیث باب المدینه وی

حقیقت دَ شش جهت ورته معلوم وی
چه دَ خدائے په یاد ئے پاکه آئینه وی

دَ خلاف جنود به زر نیست و نابُود کا
چه له چا سره تابوت سکینه وی

له هغو سره دَ چا برابری شته
چه ئے سیر تر لا هوته شبینه وی

په فرمان ئے حق باطل وَیله جُداشی
چه ئے اسم اعظم نقش په نگینه وی

په مشکات حقیقت که نظر وکړے
دَ مصباح به ئے زجاج ابگینه وی

عاقبت به ئے تمام صورت په داغ کا
چا چه ایښے په دُنیا کښے خزینه وی

(زیارت قلمی نسخه)
۳-

هسې نه چه له خپل زړۀ ئې بندۀ وائي
دا دلیل به په قرآن کښې دیرینه وي
کۀ منصف عالم نظر دَ انصاف وُکا
دَ قنبرعلي غزل باقرینه وي
دَ قنبرعلي غزل به خود رنگین وي
چه هر حرف ئې زړۀ په وینو رنگینه وي

٨٩

نقش[1] مې دَ زړۀ په مصحف زلفې دَ دلبر دي
خال وخط په مخ دَ یار نقطه زیر و زبر دي
خط دَ یار په مخ پیدا شي زۀ ورته حیران یم
څۀ عجب پیدا په صیقل تورې جوهر دي
وُښکې مې له ستر کو سیره وړې په مخ درومي
یا کۀ نثار کړي کان دَ زړۀ لعل و گوهر دي
نوم دَ عشق آخلي په مطلب ئې خبر نۀ دي
توتې دَ ملائکو په دا لار کښې بال و پر دي
یو طرف مې وُښکې زړۀ وُکا ذي بل آه و نۀ
څرنگه برعکس یو ځلې شو خشک و تر دي

[1] په دغه ردیف او قافیه ورانده یو بل غزل هم شته - غ

دوڅه دَ آه کا دَم په خوناب دَ زړهٔ رنګین وی
سرهٔ په وینو رنګ شفق په دا شام و سحر دی
خوڅه تو به وُم وُښکے مانع مشه ناصحٔ!
دا په عاشقئ کښے دَ عاشقو برګ و برهٔ ے
لاړ دَ عاشقئ ے په صراط المستقیم د ه
ایښی قد مونه په صفه لاره قنبر دی
دا جواب قنبر علی د رحمان دَ دے غزل کا
"زلفے دِ له پرېږد رازے پا ے تا سره ی"



په سحر د ستورو سرے سترګے ځلیږی
لکه شمع په فانوس دَ شب بلیږی
په ورق دَ نیلوفر دَ ګل عرق دی
که تسبے دَ شبنم وُښکے دی تلیږی
ستا وُربل چه دَ وُربل په شپے اوربل کړ
شمس قمر دَ سرهٔ تیکو نه دی نما ئیږی

ستا په چا ه زنخدان طناب دَ زلفو
دَ بېزوان په څرخ د دُور ولو څرخیږی

آئینے په مخ دَ مخ دَ نمر له تاوه
له رخساره دَ گلاب عرق څڅیږی
وسیع ملک مے دَ زړهٔ ستا دَ مخ له سوزه
په نری لختی دَ وینکو درست بهیږی
په ژړا مے دَ زړگی هیڅ سود ونشو
دَ کباب په نم دَ اور لمبه هسکیږی
لعل و دُر به وژړا باندے نثار کړم
په خندا که دَ یار سره شونډے مُسکیږی
دَ قنبر دانا خیز شعر به کره شی
که دَ حُسن په بازارے وُچلیږی

---

۹۲

چه په اسم دَ الله ئے ابتدا شی
په هغهٔ کار برکت دَ خدائے پیدا شی
په معنیٰ رحمان رازق دَ خاص و عام دے
دَ رحیم اسم خاصانو ته و فا شی
قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدْ ذات توحید دے
بیا په اَللّٰهُ الصَّمَدْ مے تولا شی
لَمْ یَلِدْ وَلَمْ یُوْلَدْ و ته نظر کړه
نهٔ له چا پیدا نهٔ څوک له دهٔ پیدا شی

نه ئې اصل نه ئې کف له چا سره دے
وَلَمْ یَکُنْ لَّهٗ کُفُوًا به انتها شی
دَ احد یکانګی حساب ئې نیشته
دَ احد صفت په ارض و په سما شی
دَ وحدت په آئینه تماشه وُ کا
نور دَ سرّ له عین جام جهان نما شی
دَ لولاک حقیقت واړه ظاهر دے
په باطن کښے دَ عارف سترګے بینا شی
انور شاه صاحب په جمع به روان شم
دَ محشر په ورځ چه ځی واړه موتا شی

۹۲

چه ګلرخ روان په سیل دَ چمن شی
له هوسه هر یو ګل په شګفتن شی
لاله فوش دَ لاړے کړه ځیل ورقونه
ګوندے لرے مے داغونه دَ بدن شی
په صفت بانده دَ استا چه ګویا نشوه
ترے ګویا به کله ژبه دَ سوسن شی
بینائی به دَ نرګس دَ سترګو وُشی
که ئې بوئی تر دماغ ستا دَ پیرهن شی
چه نسیم دَ یار له زلفو شمیم راوړی
خه ئې بو شبته به دَ مښکو دَ ختن شی

په رښتیا به زه د عشق شهید هاله شم
که د یار د کوځې خاورې مې کفن شي

تتبع د نصرالله قنبر علي کړ
چه ئې زلفې په سپین مخ شکون شکن شي

---

(۹۴)

څو د خال و خط له مخ د صنم نشي
په صاف حُسن به جرأت د قلم نشي

هغه څوک دے چه د عشق په باب قدم بدي
چه د ستا په محبت مقدم نشي

محبت آب حیات دی په صورت کښې
چه ګذر ئې په ظلمات د عدم نشي

لکه آب چه ستا په لبو کښې لیده شي
هغه آب لیده په جام کښې د جم نشي

ګل[1] د ګل په سترګو پریوځه چه ګل شي
که د ستا د ګل رخسار و ته هم نشي

---

[1] شاعر محبوب ته وائی چه ګل که ستا د ګل غوندې رخسار ته د دیدار به تیت نشي۔ نو خدائے دِ د هغه په سترګو کښې ګلونه اوکړي۔ چه مړ یعني خاورې شي ۔

په هغو دَ مسیحا دم اثر نهٔ کا
ژوندی دَ ستا دَ لبو په دم نشی

سروقد کهٔ هر څو پورته پورته کیږی
ستا د قد سره به هیڅ سره سم نشی

آب د ګل دَ وجهٔ کله خمیراخلی
چه دَ مینے په اوبو سره نم نشی

روایت مساوی نهٔ وی له آیته
کتابت سره تفسیر دَ د قلم نشی

د استاحُسن له هر حُسنه منزلا دے
هر کودک به مسیح ابن مریم نشی

نا محرم به ترِ هغه ساعت بلے شی
چه داخل قنبرعلی په حرم نشی

شاه دَ حُسن مدح څو قنبرعلی کا
چه صفت ئے په عرب په عجم نشی

۹۴

چه مې ناست دلبر دَ ګلو په چمن وي
په دیدن ئې سترګې روښې دَ ګلشن وي
هر بوټې ګل ئې و دیدن ته آرائش کا
سوسن سرو پایې آغوستي دَ سوسن وي
دَ نرګس عصا په لاس ورته ولاړ دې
په لید وئې سترګې سپینې دَ دیدن وي
دَ ګلاب غنچه دَ حال په ژبه وائي
چه نثار عطر ئې ستا دَ پیرهن وي
لاله بې پرده په څیرې ګریوان وائي
چه بې تا راته ګلشن بیت الحزن وي
شقائق ئې دَ سروشونډو مدح وائي
چه مې آب دَ عقیق وړې له یمن وي
له پرتو ئې رڼا هسې زیبائي کا
چه پرې ذرسته شپه دَ ستورو انجمن وي
دَ قنبر علي دَ مینې وطن خوښ دې
که دا نور ټوکخو ټرخرم پخپل وطن وي

## ۹۵

کهٔ غواړې چه زِنیت وا خلې کلام دَ مثنوی
مکتوب ګوهر نثار کا له اسرار دَ معنوی

رنګین کلام بهتر دے په معنیٰ دُرګوهر دے
مشهور په بحر و بر دے ښهٔ ګفتار دَ مولوی

فرزند چه دَ هر چا وی په حُسن کښے زیباوی
اشنا که نا اشنا وی په رُخسار ئے ښکلوی

یا حسن یا دولت چه خدائے ئے چا وته عطا کړه
هرڅوک له محبت ورسره ځان مشغلوی

مصرعے دی کهٔ بیتونه کهٔ غزل په ښهٔ مضمون
دا کل دَ عشق نمونه چه زړهٔ رورو نولوی

زهٔ خورم دَ هجر زهر چه یار تند وِنیم په قهر
جلاد راته دَ دهر تیغ په کاڼي سُولوی

قنبرعلی دَ ښکلو چه بلبل په باغ وئیل
میخوانند دوش درسِ مقاماتِ معنوی

قنبرعلی مثلی چه خواجه حافظ وئیلي
بلبل ز شاخ سروِ به ګلبانګِ پهلوی

(۹۴)

په د خسارے تورے زلفے پیچ وتاب دی
له هر پیچه ئے پیدا ګل دَ ګلاب دی

دَ جنت په سلسبیل پراته سنبل دی
که په زلفو پټ دلب لبّ لباب دی

مستحق یَم که زکوٰة دَ حسن راکړے
سیم وزر دَ ستا دَ مخ تیر مکنااف دی

شین لوګے به دَ آه تل ورځنی خیژی
چه ئے زړونه ستا دَ مخ په اور کباب دی

دَ قیامت عذاب هغو ته معاف دے
چه دَ ستا دَ کوڅے دَ خاورو په حساب دی

په جنتِ جاودان به مشرف شی
چه داخل دَ معنوی علم په باب دی

اُمید وار ئے له کرم قنبر علی دے
حسن حسین دَ جنت شاه شباب دی

۹۷

زلفې پېچاپېچ په رُخسارونو دَ دلبرو دي
یا کښ بنا ماران پراته په گنج دَ سیم وزرو دي

نیشته دَ نظر طاقت چه وُرسي ستا مخ ته
ستا دَ مخ په تاوُ سره شي سوي بال و پر دي

نه شي څوک آخلی ته شي زړهٔ ورکوم چا ته
ستا دَ تهمت پېتې همېشه زما په سر دي

جام دَ میو ستا له سرو لبانو څخه سیالی کا
زهر په خوراک له شهد و کله برابر دي

ستا دَ مخ دیدن به څ هرگز نهٔ مونده دلبره
حُکه په آسمان پورته ختلی سپوږمی نمر دي

سر پورته کول دَ ستا دَ قد و بلندی ته
بې کلونې یاره حُکه سرو صنوبر دي

باد چه خوشبوئي کا ستا دَ زلفو له کاکلو
حُکه شي کلو نه له انفاسه معطّر دي

دا جواب قنبرعلی کا دَ رحمان دَ دې غزل
"زلفې دې له ډېرې درازئ شي پائې مانترې دي"

## (۹۸)

چه الله دَ همه اسمو اسم ذات دے
دَ الله الف علی په بینات دے

دَ الله له ابتدا علی پیدا دے
په وجود اول له واړه موجودات دے

چه قلم سم دَ الف په وجود نشی
نور یې کوم عقل کاتب په بینات دے

دَ الله الف اول سر دَ احد دے
دَ ذات ذات وو دَ ځان ځان په دا صفات دے

احد میم دَ احمد وُ نیوهٔ په میان کښے
چه ذات ذات پکښے لیدهٔ میم میرات دے

دَ الف دَ ذات زوال نیشته له ذاته
تل حیات دے دَ عالم ذی الحیات دے

چه لام[۱] وړاندے له الف لوړے نفی شی
چه الف تر لام اول لوړے اثبات دے

دَ الله له ذاته نور دَ سر ظاهر دے
په ظاهر باطن طیب و طیبات دے

---

[۱] دَ الف نه چه لام وړاندے شی۔ نو "لا" تر ے جوړ شی۔ چه دَ نفی معنیٰ ورکوی۔ او هر کله چه الف دَ لام نه نه وړاندے شی۔ نو "الله" شی۔

اطاعت دَ اولوالامر خدائے واجب کړو
مودّتِ ئے ایمان راس الواجبات دے
چه عجب عجب اسرار تړ معلومیږی
دَ قنبرعلی زړهٔ جوړ کشف اللغات دے
دَ قنبرعلی هادی آلِ عبادی
انورشاه صاحب له رویئے نجات دے

---

## ۹۹

مصطفیٰ دَ علم[له] ښهر علی[رض] باب دے
دغه باب دے چه مفتح الابواب دے
په ابجد کښے ئے پنځه باب دولس الوابه دی
کهٔ دعلم حاصل شوے په حساب دے
دَ سالک قرب کهٔ حاصل شی له حجابه
دَ معبود په ذات قریب دَ نو حجاب دے
معرفت دَ حجاب لو یه وسیله ده
له ارشاده دَ کامل دغه جواب دے
په ابجد دولس جواب څوارلس حجاب دی
اشارت له دے کلامه دَ احباب دے

---

له حدیث شریف دے "انا علم المدینة وعلیؓ بابها۔"

پنځهٔ دولس څوارلس وارهٔ نوروسرو دی
چه دغه علم عالم اولوالالباب دے
دَ اوالالباب عدد په ابجد واخلے
مساوی دَ علی اسم په کتاب دے
په ظاهر علی ابن ابی طالب دے
په باطن اول آخر چه بوتراب دے
منصفان کهٔ دَ انصاف تله پلاس کا
دَ قنبر علی هر بیت دُرِ خوش آب دے

۱۰۰

اچولے نوبهار په چمن شور دے
ساقی جام دَ میو واخله دور نور دے
هره ورځ ابرِ نیسان په ګلو وُری
دَ شبنم غوټے په مخ دَ ګل انځور دے
دَ سحر نسیم مژده په ګلو راوُړی
چه سوړ شوے دَ خزان دَ لمبو اور دے
مثالی بلبله رقص کړه په ګلو
ترانه وائی چه کور دَ خزان خور دے
وهریوته تهنیت دَ نوروز وائی
له هوا هوس په ګلوکش سرتور دے

دَ گلزار حُسن چمن هسے رنګین کړ
چه ئے وکړه تماشه دهلی لاهور دے
دَ کشمیر کشتی په ډکه طوفانی شوه
په نجات ئے شقائق راوړے زور دے
چه په تخت دَ سلیمان شا کاوکل کیناست
دَ بهار هنګامه ګرمه لور په لور دے
په دیدن ئے نرګس سرله باغه وکش
دَ زنبق خمی ولاړه کور په کور دے
دا غزل قنبر علی و شاه ته عرض کړ
دَ ملخ پښه[ له] په معنی هدیه دَ مور دے

## ۱۰۶

دا معنی وا هل دل وته املا دے
چه مثال دَ دے دُنیا بیت الخلا دے
دا دُنیا په معنیٰ سجن المؤمنین دے
مومن حُکه ګرفتار په ابتلا دے

له دَ مخ پیښه (قلمی نسخه)

په حدیث دُنیا جیفه ده ذکرشوے
هر یو سپے په دے مردارے مبتلا دے

چه هر څوک په دُنیا خیرو خیرات نکړه
دَ هغو کسانو مال وملک تالا دے

دَ دُنیا په زمکه کشت دَ آخرت کا
دَ هرچا چه آئینه دَ زړهٔ جلا دے

متقی چه اقامت په عبادت کا
په حرمت کښے دَ نرګس لکه شهلا دے[1]

چه هر څوک طاعت دَ رب کاله اخلاص
دَ هغو عمل قبول، بول بالا دے

دَ قنبرعلی درخواست به خدائے قبول کا
چه ئے ورد سُبحَانَ رَبِّیَ الْاَعْلیٰ دے

دَ قنبرعلی له شانه معلومیږی
چه آخر ځائے ئے نجف یا کربلا دے

---

[1] شهلا (قلمی نسخه) دَ نرګس یو قسم دے. چه رنګ ئے تور وی او دَ انسان دَ سترګو سره مشابهه کیږی.

۱۰۲

اول حمد ثنا دَ خدائے عزوجل دے
چه مخلوقئے تقسیم کړه په ازل دے
دویم نعت دَ محمد رسول الله دے
چه ئے اسم په آدم عالم افضل دے
بیا به مدح منقبت دَ مرتضیٰ کرم
دَ اسلام سور دَ ایمان فرد اول دے
په لاس شمع دَ ایمان په خُله کښے شهد
مومنانو! دَ عمل مثل عسل دے
په دوستئ دَ اهلِ بیت ئے تازه روح دے
هر یو بیت په اشارت ضرب المثل دے
محبت و مودت دَ نور سِر دی
دَ مؤمن چه په صراط باندے منزل دے
تولّا چه دَ حضرت په خاندان کا
په ظاهر و په باطن خیر العمل دے
آئینه ئے دَ قنبر علی کړه صافه
انور شاه صاحب تلقین دَ زړه صیقل دے

۱۰۳

اسم ذات دَخدائے اللّٰہ صفات رحیم دے
دے مَالِکِ یَوْمِ الدِّیْنْ ذات قدیم دے
وھرچا وته وَخپَل نصیب رسیږی
په ازل دَھر اشیاء شوے تقسیم دے
دَمومن منصب اول و ھدایت دے
چه سلوک ئے په صراط المستقیم دے
چه ثابت قدم سالک په دا صراط شی
په قرآن کښے بشارت یعنی نعیم دے
دَ نیکۍ عمل ثواب نهُ دے عذاب دے
هر آیت کښے اشارت امید و بیم دے
په صفت دَ مولا هیچا لنشته توان
مگر خدائے په دے اسرار باندے علیم دے
انور شاه صاحب له باغه نسیم دا
دَ قنبر علی ازرهٔ گل په دا شمیم دے

۱۰۴

اَلحَمدُ لِلّٰہِ ثنا دَ خدائے ربِ العٰلمین دے
هم رحمان دَ هم رحیم دے هم مالک یوم الدین دے
سزاوار دَ پرستش دے چه ایاکَ نَعبُدُ وَ دے
مدد کړونے دَ هر چا دے چه ایاکَ نَستَعِین دے
هدایت کړه رهنما یے و صِرَاطَ المُستَقِیمُ ته
صِرَاطَ الَّذِینَ لار چه دَ امیرالمومنین دے
اَنعَمتَ عَلَیهِم انعام عطا یے و مونږ ته
چه غَیرِ المَغضُوبِ عَلَیهِم وَلَا الضَّالِّینَ دے
هغه کله نجات مومی چه گرفتار یے په غضب وی
گمراهانو ځلیے تله په پوړے دوزخ کښے تمکین دے
دَ الحمد سورت تام شه نعت و مدح دَ نبی کرم
چه یے اسم په قرآن کښے یوطٰهٰ او بل یٰسین دے
مرتضیٰ ولی الله دے دَ تمام عالم پیشوا د
ظاهر عروة الوثقیٰ دے په باطن حبل المتین دے
چه دوستی دَ مصطفیٰ کا پیروی دَ مرتضیٰ کا
د قنبر علی همیش دَ سعادت نور په ارین دے
قنبر خړ یو بیچاره دے دَ خورشید نمر ذره
انور شاه صاحب له لطف وله کړه آفرین دے

---

۱؎ سمیین د قلمی نسخه ۲؎ تمام د قلمی نسخه

۱۰۵

نمونه دَ ستا له خاله جام جم دے
چه ښکاره پکښے احوال دَ کل عالم دے
چه مضمون دَ باریک خطے معلوم نهٔ کړ
ځکه غوځ په تیغ دَ ثبے دا قلم دے
چه ئے چین ستا دَ جبین په تخته وُلید
له دے چینه په جبین تللے معلم دے
ما چه بیت دَ ستا دَ تورو سترګو وُکوت
په حیرت شوم چه دَ کوم استاد رقم دے
ستا کاږه بانهٔ په زړهٔ کار هر وسنه
کهٔ مے زړهٔ زخمی په نوکو دَ ضیغم دے
له سرخی ئے دَ چشمانو معلومیږی
چه ئے بیا په چا نیت کړے دَ ستم دے
مصطفیٰ چه دَ الف په ورکښے وُکوت
هائے دوب دَ حیرانئ ئے په قلزم دے
په زیر مخ دَ عاشق سرے وُښکے بهیږی
چه دِ زیر پیزوان دَ سرو شونډو همدم دے
غذا ورنه دِ غنچے دَ نوبهار دی
په لید لوئے عاشق خوش وخرم دے

زیبا زنه ئے دَ بهشت دَ باغ منه ده
دَ حیات اوبهٔ پکښې چاه زمزم دے
سرو قد دِ نو نهال دے دَخوبئ ئے
چه زیبا پرے تمامی باغِ ارم دے
څوصفت دَیار دَ مخ قنبرعلی کا
دَ دلبر حُسن دَ کل حُسن خاتم دے



په خاطر مے هسے ستا دَ مینے شور دے
چه له سترګو مے روان دریائے شور دے
ستا دَ تور و سترګو تور به مے نور ولی
چه په تور زما تور شوے کلے کور دے
کهٔ ستا مینه څوک پیخور کئي دلبره!
ما په سر سترګو منلے دا پیغور دے
لور په لوری دَ تهمت کانی وریږی
چا چه مخ دَ ذرهٔ ینولے ستا په لور دے
چه تر څُلے شنے دود وزے دَآه خیژی
لګیدلے مے دَ زړهٔ په بنهرا اور دے
چه انکار دَ ستا دَ مخ دَخط وخال کړه
دا منکر په دوو جهانو کښے مخ تور دے

دَ عاشق په زړهٔ دَ غم زخم ملهم شی
چه دلبر په حقیقت دَ دے غمخور دے
دَ شود و پڅاے مے وُ بنکے دَ فراق خورم
جدائی مے مور و پلار شوه غم مے رور دے
کهٔ دانائے دَ معنے په سترګو ګوره
یو غزل مے دَ تمام کتاب انځور دے

تتبع قنبر رحمان دَ دے غزل کا
"ستا له غمه مے په سر کښے هسے شور دے"

---

(۱۰۷)

ستا له هجره مے په سترګو کښے بل اور دے
له غه اوره مے اور بل دَ زړهٔ په کور دے
چه تر خُلے مے دَ آه دود په فلک خیژی
له هغه دود دا درست مخ دَ فلک تور دے
دا دَ وُ بنکو دَ موج شور په دا سبب دے
چه دَ زړهٔ له نمکه انه خته شور دے
دَ بهار دَ ګلو فصل مدام دیږی
دا هلال نه دے په لاس دَ فلک لور دے

---

له لاز (قلمی نسخه)

دَ امید دَ زراعت پخیدل[1] گران دی
چه په سرے فلک پرے مخے نسکوردے
دَ هرچا له زړهٔ دَ غم وینے څڅیږی
چا دَ څوے غشے خوړلے چا دَ رورد ے
په رضا[2] و مرګ ته هیڅوک غاړه نهٔ ږدی
اے قنبرعلی! اجل په هرچا پوردے

## ۱۰۸

په دُنیا کښے دے نیمګړے هروګړے
یارے زهٔ یم دا ساعت کښے ډیر نیمګړے
احتیاج مے هرطرف وته را کاږی
اچولے ئے زما په ګردن پړے
ستا په فیض یم امیدوار فیض رسانه
خدائے کړه اسم دَ فیض ستا په نام نومړے
په اظهار دَ سواله ډیر په زړهٔ خجل یم
له ضروره مے حاجت درته راوړے
آب سے لا رشی بے قیمته سبک بریوځی
دَ هرتیغ په مخ چه راشی وُسپن خرے

---

[1] پخپله (قلمی نسخه)
[2] "په رضا دَ مرګ هیڅوک غاړه کښیږدی" (قلمی نسخه)

دَ هوس له ملکه وُځئ بیګانه شی
په هرچا کښې چه پیدا شی دَغم زړے
که په سر باندې ئې لاس دَ احسان کیږدی
دا قنبر علی دَ غم سیلاب دے وړے

(۱۰۹)

چه همیش لری بهار ګلزار دَچا دے؟
چه لری له ګلو عار رخسار دَچا دے؟[1]
هر چه ذره په محبت کښې سلامت وړی
دغه هسې رنګ دلبر دلدار دَچا دے؟
مخ ئې ګل ز لفې سنبل خال ئې بلبل دے
چه ګل دے بیل و نهار بهار دَچا دے؟
چه طاقت ئې دَ دیدن چا سره نیشته
دغه هسې پُر انوار دیدار دَچا دے؟
چه محتاج ئې مخ دَ نقش و نګار نه دے
پاک له نقشه و له نګار، نګار دَچا دے؟

[1] زما په خیال دا مصرعه دا سې پکار ده:-
سه چه ګلو نه کړه ترې عار رخسار دَچا دے؟

چه دَ حسن په بازارے آزار نیشته
دغه هسے بے آزار بازار دَ چادے؟
چه له مخه ئے دَ نمرمخ لکه موم شی
مخ ئیوهٔ و هغه مخ ته کار دَ چادے؟
دَ ژوندُ ون رشته باریکه تر ویښتهٔ ده
په دا هسے باریک تار اِتبار دَ چادے؟
دَ نجات لاره صراط المستقیم ده
بے رهبره په دے لار گذار[1] دَ چا دے؟
هیڅ اثر حسن دَ یار په منکرنهٔ کا
بے منکره له دے کار انکار دَ چادے؟
که ئے تیغ دَ سترگو خون آلوده نهٔ دے
په سرو سترگو دَ خونخوار خمار دَ چادے؟
دوه پرهاره په یو ځل کا دَ یار وروځے
شان دَ دے پرهار بے ذوالفقار دَ چادے؟
که پرتو دَ نور ظهور ئے په زره نهٔ وی
په قنبر علی اظهار اسرار دَ چادے؟

---

[1] گذر - تن:

۱۱۹

چه عادي دے دَ هر چانګار دَ چا دے؟
چه خوښ نهٔ دے په آزار دلدار دَ چا دے؟
چه خزان ئے په بهار رسيدے نشي
دا هميش نوے بهار ګلزار دَ چا دے؟
چه ئے انس وجن ملک دَ مخ ثنا کا
دغه هسے پر انوار رخسار دَ چا دے؟
عرش کرسي ارض وسما ليل و نهار دي
په دا هو مره مدام کاروبار دَ چا دے؟
بے ارواح ئے بل نثار دَ ديدن نيشته
کهٔ دَ شاه موهي ديدار نثار دَ چا دے؟
طالبان ئے غسل کا دَ ځان په وينو
دغه هسے رنګ خونخوار غمخوار دَ چا دے؟
په هوس منصور دَ دار وسرته زغلي
چه دار کا په ځان هموار اختيار دَ چا دے؟
په تور تم دَ شپے موسیٰؑ ته تجلي کا
په طلب دروهي دَ نار چه نار دَ چا دے؟
په خلوت دوارو ناسئے رسول غوښته
بے مؤمن په دا اسرار اتبار دَ چا دے؟

کهٔ مومن يې دَ يقين سترګې بيناکا
بې منکره به دې کار انکار دَ چا دے؟
عارفان په په دغه رموز پوهيږي
بې سالکه به دے لار رفتار دَ چا دے؟
تتبع قنبره رحمان دَ دے غزل کا
"چه دا مست به ميو راغے يار دَ چا دے؟"



چه نازل و رباندے حکم دَ کتاب دے
په معنیٰ اولوالعلم اولوالباب دے
اولوالعلم اولوالباب رکن ايمان دے
چه په لاس کښې ئے حبل المتين طناب دے
تمسک حکم ئے عروة الوثقیٰ دے
هم شفيع د قيامت يوم الحساب دے
دغه دُرِ بے بها به هغه مومی
چه مونده ئے دَ دے بحر پاياب ئے
چه خبر دَ معرفت له رازه نهٔ وی
دَ غافل مثال دَ ديو يا دَ دواب دے
امر وَابْتَغُوْا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ دے
منکر څکه له دے بابه لا جواب دے

څوک له چا سره احوال دَ زړهٔ بیان کا؟
اهلِ دل لکه عنقا هسې کم یاب دے
په دغه معنیٰ خبر هغه سالک دے
چه خبر دَ عشق په روضة الاحباب دے
چه ئے نهٔ قرآن، حجت نهٔ ئے عترت وی
دَ بنده له هغو خلقو اجتناب دے
کهٔ هر بیت ئے اهلِ بیت حلقه نکوش کا
دَ قنبر علی غزل دُرِ خوش آب دے

## ۱۱۲

مرتضیٰ دَ نبوت دَ صبح دم دے
مصطفیٰ خاتم علیؓ نقشِ خاتم دے
چه نظر ئے دَ قدرت په کارخانه کړم
یو آیت ئے دَ قدرت لوح و قلم دے
یَدُاللہ نم دَ رحمت له دریاب واخست
چه طینت ئے خمیر کړے دَ آدم دے
مدعائے هغه نُور دَ نبوت وُه
چه گردن دَ ملا نکو ورته خم دے
ابراهیمؑ ئے دَ کمان له وهمه خلاص کړ
دَ یقین په ملک ئے زړهٔ ایښے قدم دے

اسمٰعیلؑ خوئے هاجرے ورته عطا کړو
چه پیدا ئے تر قدم لاندے زمزم دے

په سارائے دَ اسحٰقؑ بشارت دا وُړ
په امید ئے نا امید زړهٔ خوش خرم دے

چه دریاب کښے ئے موسیٰؑ ته لار پیدا کړه
دَ فرعون حشم غرق په هغه یم دے

دَ طالوت منصب نصیب چه خلافت شهٔ
په عصا دَ ده له قده سره سم دے

چه تابوت سکینه ورله را غے
دَ جالوت جنود سرا لښے په عدم دے

سرفراز ئے دَ جالوت په مرګ داودؑ کړو
سلطنت ورته عطا دَ خپل حشم دے

روح الله چه په وجود را غے له غیبه
په ګریوان کښے کړے دم ئے دَ مریمؑ دے

هغه دم روح القدس ورباندے دم کړو
دَ عیسیٰؑ دَ دم اثر له هغه دم دے

دَ حکمت له معلٰے علم نقطه دے
آئینه دَ سکندر که جام جم دے

کل مطلب پکښے دَ نور و سر ظهور وه
بهانه چه دَ آدم خوراک غنم دے

شیرحق اسد الله دَ شاه لقب دے
چه پنجه ئے ساته کړے دَ رُستم دے
دَ قنبرعلی یقین حبل المتین دے
لکه قطب دَ سما هسے محکم دے
هر بیان کښے ئے صفت دَ ثناء یاد ے
په هر ځائے چه دَ قنبرعلی رقم دے

## ۱۱۳

حمد و ثنا دَ خدائے هُوَ الله اکبر دے
هم خالق دَ کل اشیاء حکیم داور دے
نهٔ حادث نهٔ مرکب ذات دَ دے قدیم دے
نهٔ محتاج دَ چا نهٔ جسم نهٔ جوهر دے
دَ مُد دِک صفت لوی حی القیوم دے
درماندهٔ ئے له دیده نه مبصر دے
چه موسیٰ وته ئے لَنْ تَرَانِیْ وُوے
دَ دیدن طاقت ئے څهٔ دَ بل بشر دے
په او یا زرو حجا بو ئے ځان نغښتے
او یا حَله ئے په هر بندهٔ نظر دے
نهه فلک عرش و کرسی ئے له قدرته
پیدا کړی په قدرت دیر توانګر دے

دَ دریاب په مخ دَ خاوُرو بساط کوره!
چه دَ کا نوغرپر یے پرووت لکه لنګر دے
شپه او ورځ یے له حکمته یو صفت دے
چه مبدا دَ هر یو شام و سحر دے
په قدرت یے نمر دَ ستر کے له تاثیره
په معدن دَ سنګ پیدا لعل و ګوهر دے
له بارانه په صدف کښے دُر پیدا کا
په خارا کښے یے معدن دَ سیم و زر دے
نباتات که جمادات که حیوانات دی
دَ هر شی پخپل مکان جُدا مقرر دے
حاملان دَ عرش مشغول دَ خدائے په ذکر
عرش الله یے له عظمته بهره ور دے
قدسیان یے په تسبیح او په تهلیل دی
جبرائیلؑ وحے دَ خدائے په پیغمبر دے
پیغمبر دَ انس و جن رسول الله دے
دے عالم وَته مخبر دَ هر خبر دے
چه خبر دَ امر نهی رسوینه
و خالق وته د کل خلق رهبر دے
په قرآن کښے بشیرا نذیر یلے
په دوستانو دَ نعمتو مبشر دے

دَ مخبرِ صادق له قوله دا حدیث دے
مصطفیٰ دَ علم ښهر علیؓ دَر[1] دے
موافق و مخالف په دے قائل دے
دا حدیث له پیغمبر متواتر دے
کهٔ مومن ئے په زړهٔ نقش دا کلام کا
چه نبیؐ دا حدیث وېلے مکرر دے
مرتضیٰ سره به څوک برابری کا
چه بېلے ئے اخی و برادر دے
نعت و مدح دَ نبیؐ علیؓ واجب دی
چه گویا په خُلے کښے ئې به دَ قنبر دے
دَ قنبر علی دَ زړهٔ په باغ نظر کا
چه کیرلے پکښے مهر دَ حیدر دے
چه قنبر علی دَ مدحے کلام وائی
عنایت ئے په زړهٔ شوے دَ انور دے

---

[1] انا مدینة العلم و علیؓ بابها زهٔ دَ علم ښار یم او علیؓ ئے دروازه ده

## ۱۱۴

څار و تلے په بنسه مخ دَ زلفو مار دے
که دَ خال مهره ئے ایښې په دو مار دے
په پیوند دَ دواړو وروځو ئے خال کینو
که برچے په مخ قبضه دَ ذوالفقار دے
دَ بڼو غشی ئے دَ وروځو په لینده کړه
په نګاه یاندے ئے حکم دَ مار مار دے
په پرده زما دَ زړه ئے حسن ونغښت
که ئے مخ نه حجاب نغښتے دَ چوتار دے
چرے نه چه دَ غماز په لاس ئے ورکړے
دَ عاشق دَ معشوق مینے نرے تار دے
بیا ئے کوم عاشق دَ وینو پیاله نوش کا
چه را غلے ئے په سرو سترګو خمار دے
دا په زلفو ئے دی لعل ودُر پټیلی؟
که دَ زړه و هاسے پټیلے په قطار دے
دَ سرو لبو په ګوشه ئے پیزوان ښوری
که سکندر ولاړ دَ خضرؑ په چوکے بار دے
خالِ و خطِ دَ یار تول په بیان راوړ
دَ قنبر علی غزل دے له طومار دے

۱۱۵

کۀ دَ زړۀ کور دِ پاک شوے له وسواس دے
قُلْ اَعُوْذُ اوراد بِرَبِّ النَّاس دے
صفائی به دَ ضمیر هاله پیدا شی
کۀ سائل خدائے ته له مکره دَ خناس دے
دَ خناس له مکره هغه سلامت دے
چه ئے تل په ریاضت قوی اساس دے
سلامت به دَ عقبیٰ په منزل ورشے
په یقین کۀ دِ نیولے دَ پیر لاس دے
وبه ړ زرۀ ے په هغه نور تجلیٰ کا
چه له نوره ئے روښن دَ فلک طاس دے
کۀ نور خوک دَ بادشاهۍ ئے په لباس وی
دَ قنبر فخر دَ فقر په لباس دے
په زیارت کۀ دَ حسین مشرف شی
دَ قنبر علی مدام دا التماس دے

## ۱۱۴

راشه اے ساقی! یو جام جهان نمائے
ما ته را کا په نامے دَ مغه خدائے

چه احوال دَ کائنات پکښے معلوم کړم
تفحص وُکړم دَ شاه و دَ گدائے

چه گدا په گدائۍ کښے خوشحال دے
که بادشاه په بادشاهۍ ئے راحت افزا

دَ ساقی له جامه هسے را معلوم شو
چه مولا ئے دَ دوو کونو راهنما دے

مودت ئے دَ کونین آب دوئی دے
محبت ئے دے نجات په دواړه سرائے

مصطفیٰ و مرتضیٰ دوست دَ خدائے دی
همسایه پایه دَ معنوی همائے

دغه جام جهان نمائے دے که پوهیږ
که څوک نور څه نور څه وائی له دے ملائے

دَ قرآن امرالیه له و سیلے دے
دَ قنبر علی دَ فکره ئے ذارائے

انور شاه صاحب نظر و ربانی وکړه
مبصر شه دَ هر کار دے که افزائے

په ظاهر او په باطن ئې دا منکیر دے
عاقلان وائي یو خدائے بنده دے یو ځائے

واړه عشق دے چه په هر څه کښې اثر کا
که څوک خاندي که څوک ژاړي په واوے وا

دَ قنبرعلي په خیر به خوش خرام وي
که څوک وګوري جمال جهان آرائے

---

(۱۱۴)

زلفې دَ دلبر چه ترمښکو دي خوشبوئې
ځکه شوے وُبۀ دَ خجالت له کلو توئې
شان ئې ستا دَ مخ دَ خط وخال په کاغذو کوت
نقش دَ کاغذ شوے دَ چین وارۀ ماه روئې
ستا دَ مخ په څیرے ګل په باغ کښې کله موی
یاد که هر څو کا شپه او ورځ تر ز دیوئې
نقش ستا دَ خال دے چه په کسو کښې مے پروت
نۀ به ئې وُړی وُ ښکے که هر څو ئې ثست وشوئې
کله به ښکاره شي دَ وصال صبح صادقه
شپې شوے دَ هجران دَ یار دَ زلفو په څیرو ئې
کاندی به قنبرعلی ثنا دَ یار له مخه
څه ئې لره به کاندی عبث نور ګفتګو ئې

---

۱ نقش په کاغذ (قلمی نسخه) ۲ چلن (قلمی نسخه)
۳ ګل (قلمی نسخه) ۴ که (قلمی نسخه)

# مخمّس

څوک نهٔ وي دَ ځیګر په وینو وُلې
خپل صورت راته ښکاریږي مخ نا ډُولې
کهٔ په لاس وا خلم دَ یار دَ وصل ولې
یکښې وینم دَ هجران نښتلې[1] کلې
چه دَ هجر په لمبو دِ تمام سولې

دَ هغه ورځې چه یار له ما جُدا دے
جمع څوک مے په سر دَ غم سودا دے
په نظر مے ودانۍ واړه بید یا دے
کهٔ پو هیږے زما څهٔ شرم حیا دے
چه مے نهٔ دے له دے غمه دم ختلې

چه ا شنا مے دَ هجران په برق سور شهٔ
دَ وصال په ښه پورے دَ غم اور شهٔ
دَ هر چا دَ اشنائۍ نه مے زړهٔ تور شهٔ
له خپل زړهٔ راته حاصل دغه پیغور شهٔ
چه بے یاره په تل کړم غلے غلے

---

[1] نتی دقلمی نسخه)

لہ هر چا کوم پوښتنہ دَ دلبر خپل
پہ هر لوری جستجو کړم پہ نظر خپل
پہ پرواز مے نظر تل کړ بال و پر خپل
لہ فراق مے سترګو تویے کړ پرے جوهر خپل
بیایے کوم[1] دَ هجران پہ لارے تللے

کوم طرف وتہ مے مخ دَ دلربایے شہ
چہ یے ورک زمانہ زړہ نقش دَ پایے شہ
لکہ[2] نور دَ چا پہ سترګو کښے تل ځایے شہ
نہ پوهیږم چہ دَ کوم وطن همایے شہ
دَ هُد هُد خبر چہ نہ دے ترے راغلے

اے هُد هُد ! دَ بخت ورشہ و بلقیس تہ
پہ معنیٰ دَ سُلیمان بادشاہ انیس تہ
پیغام یو سہ دَ ښائست[3] دَ ملک رئیس تہ
پہ رخسار دَ خط و خال و خوش نویس تہ
چہ[4] پہ تا پسے لہ عقلہ یم وتلے

لاس بہ وانخلم دَ یار لہ محبت نہ
کہ جنګ ریز شم دَ جهان لہ ملامت نہ
اخستلے شم پہ سر بار دَ تهمت نہ
تر هغہ ساعتہ ناست یم پہ دایت نہ
څو مے جوړ نہ وی پہ سر دَ کانړو کلے

[1] نور و د (قلمی نسخہ) [2] لکہ نور چہ چا پہ سترګو تل ځایے شہ (قلمی نسخہ)
[3] دَ خوبئ (قلمی نسخہ) [4] یمے پښا (قلمی نسخہ)

خم قامت دَ یار له غمه لکه نون یم
دَ دلبر په ښائسته سترګو مجنون یم
چه ئې وینم دَ خوبانو په افسون یم
له وحشیو سره دَ مینے په هامون یم
کله سور کړ حُم په عشق کښے کابلے

چه یوسف له خوبه تلے له وطن دے
دَ یعقوب په شان مے کور بیت الحزن دے
دوا په وسترګو مے اغوستے سپین کفن دے
دَ ژوند وَن امید مے بوی دَ پیرهن دے
کوندے وُوینم په سترګو هغه ښکلے

چه دَ ښکلو په غمزو سره شهید دے
دَ هغو دلے عاشورا او ورے عید دے
دا جواب چه دَ مهمند عبدالحمید دے
دَ خوبانو دَ غوږونو مروارید دے
چه په غوږ ئې وی دَ عقل زنګولے

تمت بالخیره

# فرهنګ

(ا)

اياغ:- پياله -

اوجاع:- نغرے

اهلِ بيت:- اهلِ رسول

احقرالعباد:- خاکسار دَخلقو

اوراد:- دَ وِرد جمع- وظيفے

افسر:- تاج

اَدرَه:- ګونګے

ارکان:- دَ رکن جمع

اصطفا:- منتخب -چوڼ- دَ خراسان (ايران) دَ يو مشهور ښهر نوم چه اوس په مشهد ياديږی - فردوسی دَ دے ښهر دُ سيد وو -

ارسطاليس:- ارسطو

انيس:- غمخوار- دوست

اجماع:- غونډه- جمع

استماع:- اوريدل-

ارتفاع:- بلندی- اوچتوالے-

اوضاع:- طور طريقے- سامان

انواع:- دَ نوع جمع قسمونه- رنګونه

اوجاع:- دَ وجع جمع، درد، تکليف

اعراف:- دَ جنت او دوزخ ترمينځه دَ يو مقام نوم دے-

ادراک:- عقل

ابق:- تښتيدلے

التفات:- مهربانی- نظرِ عنايت

اَديم:- سطح - مخ -

اصفيا:- دَ صفی جمع په زړه پاک-

اَنبِئُونِی:- فَقَالَ اَنْبِئُوْنِیْ بِاَسْمَآءِ هٰٓؤُلَآءِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِیْنَ (سورة البقرآيت ۳۱) ترجمه- بيائے وُ فرمائيل چه وُښايه ماته نومونه دَ هغه څيزونو که چرے تاسو رښتونی يئ-

اُولوالامر:- حاکم- بادشاه-

اولوالباب:- هوښيار، عقلمند، صاحب عقل

ابو تراب :- دَ حضرت علیؓ کُنیت۔
اِثناعشر :- شیعہ کان چہ خپل ځانونه دولسو(۱۲) اماماتو ته منسوب کړی
افراسیاب :- دَ توران یو بهادر او ویرلوی بادشاه تیر شوی دی۔ چه ډیر عمر دَ ایران کیانی بادشاهانو سره جنګیدلی دی۔ ولے آخر دَ رستم په مرسته دَ سیاوش زوی کیخسرو دَ خپل پلار دَ قتل انتقام ترے واخست۔
آشوب :- شور غوغا۔ درد۔ بیماری فتنه۔ خوب - شور و شر۔
الست :- دَ قرآن شریف آیت اَلَستُ بِرَبِّکُم ته ترجمه۔ آیا زه نه یم ستاسو رب۔
اُکتبی :- وُتیکه زماد پاره۔
آصف :- اصف ابن برخیا۔ دَ حضرت سلیمانؑ وزیر وو۔
اَحسَنِ تَقوِیم :- په ډیره ښکلی انداز
انځور :- نقش و نګار۔
ابتلا :- آزمائش۔ امتحان۔
اِیَّاکَ نَعبُدُ :- اے خدایا! مونږ خاص تا له عبادت کوُو۔
اِیَّاکَ نَستَعِینُ :- او هم ستا نه په هر څه کښے مدد غواړو۔
اَنعَمتَ عَلَیهِم :- چه تا پرے پیرزوینه کړے ده۔
اجتناب :- ځینبته۔
اخی :- ددور۔

## (ب)

بخس :- ناقص۔ کوته۔ کلپ
بَیِّنَات :- روښانه دلیلونه۔ صادق ګواهان۔
بدرګه :- حفاظتی دسته۔
باج :- خراج۔ جزیه۔ محصول۔
برید :- پیښه
بعید :- لرے۔
بیستون :- دَ ایران یو مشهور غر چه فرهاد دَ شیرینے دَ پاره سورے کړے وو۔
بوالهوس :- هوس پرست۔
بیته :- کور۔
بائع :- خرڅوونکے۔

بیت الحریم :- بیت الحرام - خانه کعبه
یتیم :- دیره - ترحم
بُو تراب :- مطلب حضرت علی رض ده
بیت الحزن :- غمکده - دَغمونو کور
هغه کور چه یعقوبؑ بچنے دَیوسفؑ په
جدائی غم ژړلو -

( پ )

پهزان :- دَختکی یو قسم
پښه :- دبڼ خور - سیرا یه دُل
پنجتن :- مطلب آنحضرت صلی الله
علیه وآلهٖ وسلّم، حضرت علی رض
حضرت فاطمه رض، حضرت امام حسینؑ
او حضرت امام حسنؑ مراد دی -
خدا کے نور سے بیدا ہوئے یہ پانچوں تن
محمد است وعلی رض فاطمه حسین وحسن
پیماک :- غم - درد - پور - قرض

( ت )

ترپ :- دَوُ - منډه - زغل -
توسن :- آس تنک :- صراحی
تَوَکَّلتُ عَلَی اللهِ :- اِنِّیْ تَوَکَّلْتُ
عَلَی اللهِ رَبِّیْ وَرَبِّکُمْ (سوره هود

آیت ۵۶) ترجمه ما په الله پاک یا ننه
توکل کړے دے چه زما مالک دے استاسو هم
تروټ :- تاوان - نقصان -
تاراج :- لوټ - تباهی
تجنیس :- مثال - همجنس
تپاک :- شوق - جوش - بیقراری
تابوت سکینه :- دَ کامل سړی جُثه
توَلّا :- مینه - محبت - امید
تهنیت :- مبارکیا دی - مبارکی
تمسک :- مضبوط
تهلیل :- دَ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللهُ کردان

( ټ )

ټوټه :- کنډول - دَخاوُرو پیاله
غ بته کوبره چه غوټه نیمه شی لکه پیاله

( ج )

جُونگ :- وَله - دیاله -
جلیس :- دوست - همنشین
جنود :- دَجند جمع لښکرے، فوځونه -
جیفه :- مُردار
جلا :- صفا - پاک
جالوت :- یو کافر بادشاه چه دَ بنی اسرائیلو دَ ښمن

چ

چین په جبین:- په تندی گونجې

چلانک:- دَ مادغې یو قسم

چوتار:- سپین پټکے.

ح

حریر:- ریښم

حجر:- کانړے.

حُجج:- دلائل

حاذق:- دانا. ذیرک

حَیَّ عَلَی الْفَلَاح:- راشئ ځائے دَ خلاصئ ته.

حسنات:- دَ حسنه جمع. مطلب نیکی

خاشع:- عاجز.

حُورالعین:- چه دَ حُورې غونډې سترګې ئې وی.

حلیم:- بُرد بار. صابر

حَبلِ المتین:- مضبوط رسی مطلب قرآن دے.

حُجت:- مباحثه. لوظ.

خ

خُفته:- وُده.

خوارج:- دَ شیعه ګانو خلاف یو فرقه.

خاضع:- عاجز.

خضوع:- عاجزی کول.

خشوع:- انکسار، عاجزی.

خُلد:- جنت.

د

ورا:- دَ درهم جمع. دَ سپینو ندو سکه

دیښنه:- دښمن. غلیم.

دُوړه. رخنه اندازی. بنګ اچول.

دسترس:- دَسں.

دوازده امام:- مطلب دولس اماماں. یعنی حضرت علیؓ، امام حسنؓ امام حسینؓ، امام زین العابدینؓ امام باقرؓ، امام جعفرؓ، امام موسٰی کاظمؓ. امام موسٰی رضاؓ. امام تقیؓ امام نقیؓ، امام حسن عسکریؓ. او امام مهدیؓ.

دُرِّ مکنون:- خالص موتی. یکا موتی

دُرِّ یتیم:- هغه موتی چه سیپۍ کښې ایکے یو وی. یکتا. لاثانی.

داور:- عادل. مُنصف

ذ

ذُرّیت:- نسل. اولاد.

ذفاف:- جلدی

ذوالفقار :۔ دَحضرت علیؓ دَتورې
نوم۔ چه دوارو طرفو ته ئې تیرهٔ دو۔

ر

راغب :۔ خواهش مند
رخشه :۔ رخش۔ دَرستم داسټ
اَس چه په رنګ سور او سپین دو۔
روړ :۔ دَ پښتو نخوا ذوړ نوم۔
رجا :۔ امید۔
رم :۔ تیښته۔
رضوان :۔ دَجنت دَ ټوکیدار فرښتے نوم۔
راکع :۔ رکوع کوونکے۔
رجیم :۔ رټکړے شوے۔ دا لفظ عام طور
دَشیطان په حق کښے راځي۔
رؤف :۔ ډیر مهربان۔ الله تعالیٰ
رمق :۔ نیم ځان۔ څه لږ ځان۔ دوړ
ڈوند۔
رُوح الامین :۔ حضرت جبرائیل علیه السلام
رَم :۔ تیښته۔ منډه۔ دو۔
رُوحُ القُدُس :۔ مطلب روح چه په
حضرت عیسیٰ علیه السلام
نازل شوے وو۔

زُجاج :۔ شیشه
زلال :۔ پاک او خوږ اوبهٔ۔
زنبق :۔ یو قسم ګل دے۔

س

سمک :۔ مزکه۔ سجاده۔ مُصله
سرزنش :۔ سزا
سرکوب :۔ سربند۔ سرقربانول۔
سُفته :۔ پیرل۔
سَتپ :۔ ډے غورزنه وه۔
سپتے پخے۔ سراج :۔ ډیوه۔
سالک :۔ دَ صوفیانو په اصطلاح
کښے هغه کس چه دَ قُربِ الٰهی طالب
دی۔ او دَ معاش فکر هم لري۔
سُبُل :۔ دَسبیل جمع۔ لارے۔
سیّئات :۔ ګناهونه۔
سلسبیل :۔ دَجنت دَیوے چینے نوم
سروش :۔ فرشته۔
سامع :۔ اوریدونکے۔
مساجد :۔ سجده کوونکے
سراغ :۔ درک۔ لټون
سیوف :۔ دَسیف جمع تورے۔

**سوګ**:- حزن ۔ غم ۔ پېرزه ۔ ماز

**سقیم**:- مریض ۔ نادوغه ۔

**سلیمان**:- دَ داؤد علیه السلام ځوئ
او مشهور پېغمبر چه دَ حضرت عیسیٰ
نه اګاهو تېر شوی دے ۔ دَ بیت المقدس
تکمیل دَ دوی په وخت کښې شوی وو ۔
چه بنیاد ئې دَ دوی پلار حضرت
داؤد ایښے وو ۔ ورستو بیا دَ
بخت نصر دَ لاسه تباه شو ۔ دَ
دَ فاروق اعظم په زمانه کښې دوباره تعمیر کړے شو

**سُبْحَانَ رَبِّيَ الْأَعْلٰى**:- پاکی دَه زما لوئے رب لره ۔

## ش

**شُست**:- په لېنده دَ غشی ایښودلو
ځائے ۔ حلقه ۔ ژیه ۔

**شب داج**:- شبِ دیجور ۔ توره
تاریکه شپه ۔

**شافع**:- سفارش یا شفاعت کوونکے ۔

**شقائق**:- ګلِ لاله ۔ ریدی ګل

**شهلا**:- دَ نرګس یو قسم دے چه
رنګ ئې تور دے او دَ انسان
دَ سترګو سره مشابهه کیږی ۔

## ص

**صباح**:- دَ سحر خړیکه

**صبوح**:- دَ سحر شراب

**صفی**:- آدم صفی الله

**صالح**:- نیک عمله ۔ نیک

**صلوٰة وصیام**:- مونځ او روژه

**صِرَاطَ الْمُسْتَقِیْمَ**:- نیغه لار ۔

**صِرَاطَ الَّذِیْنَ**:- دَ هغه چا په لار

## ض

**غَیْرِ الْمَغْضُوْبِ عَلَیْهِمْ وَلَا الضَّآلِّیْنَ**:- چه غضب پرې شوے نه دے او نه ګمراهان دی

**ضغیم**:- زمرے ۔

## ط

**طهارت** ۔ پاکی ۔ پاکیزګی ۔ صفائی

**طاهر**:- پاک ۔ صفا ۔ **طماع**:- طمع کوونکے

**طالع**:- راختونکے ۔ **طالح**:- بدکار بد

**طباع**:- دَ طبع جمع ۔ طبیعتونه ۔

**طوبیٰ**:- دَ جنت دَ یوې ونې نوم ۔

**طبق**:- تهه ۔ تل **طیّب**:- حلال ۔ پاک

**طالوت**:- دَ بنی اسرائیلو دَ یو سردار
نوم چه دَ دهٔ نه پس حضرت داؤدؑ بادشاه
شوے وو ۔

طوماو :- لوے ادارے دخط

ع

عزازیل :- ابلیس - شیطان

عزیمت :- اراده - عزم -

عباء :- کمبل - یعنی دَکمبل خاوند

رسول اللهؐ یعنی دَقنبر علی رضی

دَرسول خدا دَاولاده ئے مطلب

ئے خپل پیرا نورشاه دے -

علیم :- صاحبِ علم -

عروة الوثقیٰ :- فقد استمسك بالعروة

الوثقیٰ - ترجمه :- نو هغه مضبوطه

کړیه ته لاس واچو وچه هیڅکله

دَ هغے پریکیدل نشته -

عِترت :- خپل خپلوان - اولاد

غ

غوری :- هسک - ریچه

غزالان :- هوسی - لکه شوی

ف

فهیم :- دَ فهم خاوند - ویرپوهیا

فصد :- رګ وهل -

فی قلبِ سلیم :- اِذ جاءَ ربّه بقلبٍ

سَلیم ط کله چه خپل رب ته په پاک

زړهٔ متوجه شو -

ق

قدسِ عرق :- بیتُ المقدس ته کښے پوغونږم.

قال :- خبره

قدسیان :- دَ قدسی جمع - صالح

نیک خلق - اولیاء الله -

قُل اَعُوذُ :- دَ قرآن آخری سورت -

ترجمه :- ووایه خلقو ته چه پناه غوارم

دَ پیرودګار دَ انسان سره -

ک

کمانفیلمنده - کاذب :- دروغژن

کیّے :- لړ کوګی - شرل -

کبه کوته :- درانه ویجاړه -

کدخدائی :- واده - بنادی -

کف :- مثال نظیر یعنی کیاڼو :- ستر لوے

کوتوبه :- قلعه کانی -

کسوف :- دَ نمر تندرنیول -

کانګه :- چغه - شوروکه -

کاف ونون :- قرآنِ پاک کښے

الله تعالیٰ فرمائی چه هغه دَ څه

څیز فیصله وکړی یا دَ کوم کار کولو

فیصله وکړی نو درنه وائی ګڼ دوګنه) نو ونشی.

## ګ

ګلیم :- کمبل - ګودړی -

## ل

لجام :- قیزے واګے -

لاهوت :- د ذات الٰهی مقام چه سالک ته پکښے د فنا فی الله مقام حاصل شی

لن ترانی :- یعنی ته هرګز ما نشے لیدے . د الله تعالیٰ حضرت موسیٰ ته وئیلی وو. کوم وخت چه موسیٰ رب ارنی یعنی اے پروردګاره ما ته ځان دیدار وښایه -

## م

مشکات :- ډیوټ - چراغدان -

مدرک :- خبرے ته رسیدونکے -

مطاع :- اطاعت کړے شوے. مبتدا :- شروع - ابتدا

مازاغ :- مازاغ البصر وما طغیٰ طرفته اشاره وه - یعنی د معراج په شپه رسول الله سترګے مبارکے د الله پاک د نور نه بلخوا نه شوے

ملفوف :- نغښتے - لفافه شوے -

موصوف :- وصف شوے - تعریف شوے

مهجور :- جدا شوے موتا - د میت جمع مړی

مقدم :- قدم ایښودونکے - سرفراز -

منزه :- پاک - صفا - سوتره -

مردمک :- د سترګو ګلګے -

مجتهد :- د فقه مسئلے چه راوباسی -

مودت :- مینه - محبت -

مانړے :- خفقان - مژده :- خوشخبری -

مولا :- مطلب حضرت علی رض

مروارید :- موتی - پوچکلا رکانړے -

مستغنی :- بے پروا -

منفعت :- سود - فائده نفع مصباح :- ډیوه

معارف :- د معرفه جمع. شناسائے - پیژندګلو

مروج :- رواج شوے. ملاح :- ماڼګے

مرج :- مرج البحرین یعنی دوه چلول دوه دریابه - مرج عربیه کښے ورشو. او مرج فساد او تباهی ته هم وائی -

مباح :- جائز - روا - حلال

مشروع :- واضح - سرکنډ -

مفتوح :- پرانستے -

محدود :- لږ مقدار د شمار -

مومن :- ایماندار -

مجدد :- نوے - کومه خبره د نوی سره پیدا کونکے -

مسکون :- دَ مزکے صفه خلورمه برخه چه آباد لا ده -
من سلویٰ :- ترنجبین - مرذ

ن

نُقَدِّسُ لَكَ :- وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ وَنُقَدِّسُ لَكَ ؕ (سورة البقره آیت ۳۰)
ترجمه :-
او مونږ پاکی بیانوو ستا د تعریفه او پاکی بیانوو دَ پاره دَ ستا -
نقیب :- چوبدار
نهفته :- پټ - پوشیده -
نیستان :- هغه ځکل چرته چه نل ویړا وکړی وی -
نټ :- دوکه - فریب -
نغوته :- لمسه
نصوح :- داسے توبه ویستل چه دَ هغے نه پس دَ ګناه نه کولو اراده وکړی -
نَحْنُ اَقْرَبُ اِلَیْهِ مِنْ حَبْلِ الْوَرِیْدِ } دَ قرآن شریف آیت دے - یعنی مونږ نزدے یو انسان ته دَ مرګه دَ رګو نه - ورېدو په معنیٰ دَ شهرګ (سوره ق آیت ۱۶)
نجف :- دَ عراقِ عرب دَیو ښهر نوم دے چرته چه دَ حضرت علی رض مزار یاد یږی - دَ شهنشاه نجف نه مراد حضرت علی کرم الله وجهه دے -
نهروان :- په عراق کښے دَیو ښهر نوم دے -
نرناحق :- بر ناحق - دُچ په - وچه
نافع :- فائده یا نفع کوونکے -
ندیم :- دوست
نعیم :- جنت -
نوروز :- دَ فروردین دَ میاشتے دَ ورومبے تاریخ ۲۲ مارچ دَ ایرانیانو دَ اختر ورځ دکا -

و

وبال :- ګناه -
وَالشَّمْسِ وَالضُّحٰی :- (سوره الشمس آیت ۱) ترجمه :- قسم دے

په نمر او د هغه په رڼا

وُلېږي :- ولېږل . تلل . ترپاېدل

وَجَّهْتُ :- اِنِّيْ وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِيْ فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ الخ (سورة انعام آیت ۷۹)

ترجمه :-

زهٔ خپل مخ د هغه طرفته کوم . چا چه پیدا کړي دي اسمانونه او مزکے .

وک :- واک . اختیار

وصی :- هغه چا ته چه وصیت شوی وی

ورئے :- یعنی ورځے

وقوف :- عقل . پوهه

وَلَقَدْ كَرَّمْنَا :- وَلَقَدْ كَرَّمْنَا بَنِيْ آدَمَ وَحَمَلْنٰهُمْ فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ وَرَزَقْنٰهُمْ مِّنَ الطَّيِّبٰتِ وَفَضَّلْنٰهُمْ عَلٰى كَثِيْرٍ مِّمَّنْ خَلَقْنَا تَفْضِيْلًا ۝

(سورة بنی اسرائیل آیت ۷۰)

ترجمه :-

او مونږ د آدم اولاد ته عزت ورکړے دے . او هغوی په وچه او تره دواړو باندې سواره کړي دي . او پاکیزه څیزونه مو ورله روزي کړي دي . او په خپل ډېر مخلوقات باندې مو ورله ښکاره فضیلت ورکړے دے .

وَابْتَغُوْا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ :- وَابْتَغُوْا اِلَيْهِ الْوَسِيْلَةَ وَجَاهِدُوْا فِيْ سَبِيْلِهٖ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ۝

(سورة المائده آیت ۳۵)

ترجمه :-

او د هغه په دربار کښے د کامیابئ ذریعه ولټوئ

## ه

هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ :- يَوْمَ نَقُوْلُ لِجَهَنَّمَ هَلِ امْتَلَاْتِ وَتَقُوْلُ هَلْ مِنْ مَّزِيْدٍ (سورة ق آیت ۳۰)

ترجمه :-

په کومه ورځ چه وُوایو دوزخ ته چه ته ډک شوې؟

نو دائې به چه څه نور هم شته؟

**هلاهل**:۔ دَ هغلکو زهرو یو قسم دے۔

**هاتف**:۔ فرشته۔

**هُدهُد**:۔ مُلا چرگک۔ کوډی چرگ۔

## ی

**یکانگی**:۔ لاثانی۔ بے مثله

**یَدُ اللهِ فَوقَ اَیدِیهِمْ**: دَ خدائے پاک لاس دَ هغوی په لاسو نو دے۔

(سوره فتح آیت ۱۰)

**یوصاع**:۔ څوی

**یمین**:۔ ښے طرف۔

**ید بیضا**:۔ سپین او بریښیدونکے لاس حضرت موسیٰ ع چه دَ گریوان نه به ئے لاس راوویستلو نو دَ نمر غوندے به روښانه وو۔

**یَمُّ**:۔ دریاب۔

**یُحْیِ الْعِظَامَ**:۔ قَالَ مَنْ یُحْیِ الْعِظَامَ وَهِیَ رَمِیْمٌ ۞

(سوره یٰسین آیت ۷۸)

ترجمه:۔

دائې او هغه وکې چه هغه ذړه شوی وی ژوک به ئے ژوندی کړی۔

**یَدُ اللهُ**:۔ دَ قرآنِ پاک آیت دے یعنی طاقت دَ خدائے ستا سره۔